



# کندهار

زموږ د ګران هیواد د پایتخت کابل د پل خشتي مبارک مسجد جامع
چې زموږ د متدین او شریعت پالونکي ټولواک همایوني معظم اعلیحضرت په امر
او هدایت په عصري ډول ترمیم او ښکلی شوی دی او د اسلام د مدنیت روښانه نمونه
ګڼل کیږي، کوم مواد چې د دغې ښکلې او تاریخي ودانۍ و ښکلا ته ئې سر او
سامان بخښلی دی په پورتني فوتو کښې ښکاریږي .

ادبي نثر

# زمازړه

داګوڅنی ټوټه چې (زړه) نومیږي‌پدې کښې ډیر و ښکلو انسانانو تصورطوافونه کړیدی

هغه ډیری آرزوګانی چې پده کښې ځای نیولی دی نودزړه لوم نه ورسره ښائي بلکه ښائي چې دغوښو آسمان ئي وبولو .

وده ته ډیر ومحبتو کښه راکړی‌ده او ډیر ته ئي کوچ‌ځنی کړیدی اولکه نورځینی زړونه پژ مرده شوی ندی.

په‌عوض کښې ددی‌چې دد نیادسرواوسپنو زرو په‌امیدفشار پر راسی دانسانی فرشتو په هیله ئي ځان‌زهیر کړیدی.

دلته چې هرڅه خواشینی راغلی ده دی ئي له‌خپل حال څخه ندی ګرزولی اوپه هر وخت او هر وتودو اوسړو کښې تازه او متحمل وی .

دلته دجهان منافقینو اقامت ندی کړی‌هرڅه ئي چې کړی‌وی پریوه پاك اوبی آلایشه‌عشق بناوی او که‌وپوښتل‌شي‌د سپیڅلی عشق سره ډیر آشنادی .

دناوړه‌چاروسره‌لار نه‌لری‌اونه‌غواړی‌چې‌پر خپله‌سپینه‌ځامه بالدی توری ټپلی پیداکړی.

ځکه‌چې دماهرویانو وارزوګانو ته‌همیشه تسلیم دی نوځکه ویلای شم‌چې «زمازړه یادماهرویانودلو بو آله» (هارونی)



## ددیدار په‌هیله

زمامحبوبی ستادلیدو په‌غشی‌او‌هغه لطف چې‌زما ته دی وکتل تراوسه خوشحاله‌زړه‌لرم- که‌دجدائی په توره‌شپه کی‌زمادحرمان تودی‌اولړزانه اوښکی راتوی‌شوی نه‌څه‌غم‌لری؟

دوصال ددرخشانه لمر پلوشی برېښی اوژر به داوښکو دشبنم اثرات یوسی‌هغه به څوك وی‌چې دبشر دفراموش کار ی څخه انکاروکړی؟

طوفانی اوخروښیدونکی څپی‌ددریاب وغیږې ته پناه‌راوړی اوسهاردساحل دځلیدونکو شغلو اثر باقی نه‌وی .

نو ئن چې موږ یودبله‌وداع‌سره کووهرڅونه چې سره لیری‌یو بیاهم دګلانوغوړیدوپه طراوت‌سره به یودبل په‌دیدار کامیابه‌سو .

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
مسؤل مدیر: زلمی (بارک)

کندهار
میاشتنۍ خپرونه
ادبي، تاریخي، اجتماعي، علمي
اداره: د شهیدانو واټ
د تاسیس کال ۱۳۳۹
د یوولسم کال یوولسمه ګڼه
پرله پسې ګڼه ۱۲۵

کالنۍ بیه
په کندهار کې [۲۸] افغانۍ
د هیواد په داخل کې [۳۳]«
په بانديو هیوادو کې یو ډالر

د سلواغې میاشت
۱۳۴۹ لمریز کال

## د دې ګڼې مضامین



د کندهار دولتي مطبعه

# په ټولنه کې د نهضت نخښې

څرنګه چې د طبیعت په جهان کښې ځینې مسلم قوانین د انتظام او ادارې د پاره کار کوي .

دغه رنګه په انساني ټولنو کښې هم یو لړ نوامیس او مقررات وجود لري چې د جامعې نظم او ترتیب ساتي . د ترقي او انحطاط د نیک مرغۍ او بد بختۍ علتونه او عوامل په خپل وخت او زمان کښې ښه‌ئي .

څرنګه چې یو منجم د استرو نومۍ د علم او ریاضیاتو له مخې په ټاکلي وخت کښې د سپوږمۍ یا لمر د نیوا او خبر موږ ته راکوي یا یو نفر هوا پېژندونکی د مخه تر باران او د واورې او ربدلو څخه موږ ته د هغو د کیفیت او څرنګوالي وخت او نېټه را ښئي .

دغه شان اجتماعي پوهان هم چې د ټولنو د انحطاط او ترقي مرموز او سرارئي موندلي دي د جوامعو موقف ، حرکت او سکون پرمختګ او وروسته پاته کېدل موږ ته بیانوي . وخت او زمان ، علت او سبب ، ګټه او ضرر د ناستې او خوځېدو موقع او لارې را ته ښه‌یي ؛ که موږ د دې علم د رڼا نه څراغ په ډېرو ډلو سره د ټولنو قومونو تیاره حالات وڅېړو او د هغه وخت د اجتماعاتو په بطنو کښې ورننوزو د دوی د ژوندانه طرز او د افکارو څرنګوالي ځان ته معلوم کړو بیا به نو په او سني عصر کښې زموږ د حرکت او پرمختګ د پاره فکري اختلاف او د لارې ټولوالي مصداق پیدا نه کړي او په اکثریت سره به خپله د ژوند قافله و منزل مقصود ته روانه‌ؤ . دا چې زموږ فکرونه پاشلي او د ژوند د ښېګڼې د پاره مو نظریات سره بېل او د ګټ لارې مو سره جلا دي .

د اجتماعاتو د مسلمو قوانینو څخه یو دا دی چې: کله د ټولنو پر افکارو ، آدابو او د ژوندانه پر نورو اړخونو کلونه او پېړۍ تېرې شي نو ذهنیتونه او عرف و عادت او د ژوندانه نور لوازم هم سم ور سره زړېږي د مثال په ډول څرنګه چې د یوې فابریکې ماشینونه تر یوه ټاکلي وخت پورې خپله وظیفه اجرا کولای شي او ځان ته استهلاك لري . کله چې ماشینونه زاړه او تر خپل وخت واوړي نو طبعاً خپله د نده په ښه توګه اجرا کولای نشي ، د همدې سببه د کارخانو خاوندان کال په کال د ماشینونو زړې پرزې په نوو الیشوي او که چېرې موږ تر دې یو څه نظر لوړ کړو او د مادي شیونو وڅرنګوالي ته ځیر شو نو دا به په لومړي فکر ثابته شي چې په طبیعت کښې د هر شي د پاره وخت او زمان ټاکل شوی دی او تر خپل ټاپې وروسته بیا په بله پرده کښې ځان ښکاره کوي .

د انسانانو فکر او ذهنیت او د ژوندانه نور مظاهر هم تر دې ابدي قانون او تغیر ناپذیره ناموس لاندې دي هر فکر او هر ذهنیت د ځان د پاره جلا وخت او بېل لوازم لري ، چې د خپلو مادي ظروفو په اندازه او طاقت سره چلاو او پرمختګ کولای شي .

کله چې زماني او پېړۍ پر تېرې شي او د طبیعت د ناموس سره سم مستهلك شي بیا نو نه سم چلاو کولای شي او نه د انساني ژوند او بشري جامعې د آرزوګانو په مجرې پوهېدای

مترجم: محمدعلی «خواجه»

# په منځنی پېړۍ کښې د فرانسې ادبیات

په منځنی پېړۍ کښې فرانسه د ادبیاتو مرکز ؤ. ایټالیا، بریتانیه، اسپانیا، جرمنی او نورو هېوادونو ته د همدغه فرانسې څخه د شعر او ادب وړانګې خپرېدلې.

که څه هم په دغو سیمو کې ژبې او د ویلو طرز یو تر بله توپیر درلود خو په معنوي لحاظ تر اوسه لا لوېدیځه اروپا سره یوه ده.

د علم او پوهې د نړیوالې بین المللي ژبې «لاتین» سره پوره یووالی درلوده. که څه هم د کلیسا نړۍ د دکتریني او نورو له شخړو څخه نه وه خالي خو سره له هغه بیا هم د یووالي تشکیل ئې درلود.

د درباریانو او شوالیه ؤ دنیا هم د سیاسي او شخصي شخړو سره سره یوه وه.

د ادبیاتو نړۍ هم د اولسي او کلیوالي تر اشعارو په توپیره لوړه مرحله کې پورته واقع شوې وه. د شمالي ایټالیا ادبي ژبه وروسته تر ایټالوي ژبې فرانسوي وه.

په منځنۍ پېړۍ کې دیووالي غوره سمبول الهي کمېډي حساب شوې چې په هغه کې پوهان، شاعران او د زمانې لوی خلک د هر کوټ څخه د دغه ځانګړي جهان په چوکاټ کې ځای شویدي.

د روم لوېدیځ ایالت ته نژدې فرانسه وه د اروپا د منځنۍ پېړۍ ادبیات په دغه سیمه کې د هغو د فکر او ادبي یووالي په عمومي توګه د فرانسې له خوا کنټرول کېده.

شي.

کله چې داسې زوړ فکر او زاړه ذهنیتونه د جامعې پر شئونو مسلطه وي، د افکارو تصادم او د ذهنیتونو جګړه شروع کېږي.

څرنګه چې هر نوی فکر زوړ فکر له منځه وړي او هر ځوړ شي خپل ځای نوي او ځوان شي ته پرېږدي نو ځکه د طبیعي نوامیسو په اساس په دې مبارزه کې نوی فکر بریالی او زوړ فکر ناکام دی.

هوښیاري او وخت-شناسه جامعې هغه دي چې لومړی د فکر او د زوړ آیا وخت ورمعلوم وي؛ او دوهم د نوو ذهنیتونو ته بې له تصادم او جنجال څخه لار ورکړي. او خپل د ژوندانه اسباب او لوازم په نوي رنګ سره سامبال او خپلې مدني او اجتماعي

چارې په نوي تهذیب د دیني اساساتو سره سم ودانې او تعمیر کړي.

که چېرې یوه جامعه وخت نه پېژندونکې او قدامت پسنده وي او د زاړه فکر د لمنې څخه ئې لاس نه اخیستی نو د لته د نوي

زمانې د ایجاباتو سره سم مدني او تعمیري فعالیتونه راکد پاتې کېږي چې دا عمل په جامعه کې د بحث او انتقاد تر عنوان لاندې عرض اندام کوي

ا-م «کرزی»

## شوالیشی او شخړه غوښتونکې غړی

لکه څنګه چې انګلیسی ادبیات بیوولف سره شروع شوی ؤ همدارنګه د فرانسی ادبیات (دخوبی اهمیته مذهبی آثارو څخه پرته) درولاند په سرود سره شروع کېږی.

دا شعر د هومر تردوري لا ابتدائی دی د کلاسیك له تمدنه اود «گریکورومن» له تاریخه د (بیوولف) په اندازه بی خبره دی.

یوه حماسه ئی څلرزره مصرعی وی چې ازانګی ئی د (شارلمان) د جنګونو له موضوع څخه پورته کېدلی. د کلاسیك محدود آثار چې په هغه کښی په نظر راځی ډېر کمزوری او ایت وپرك دی.

«اولاند» د قهرمانی شعرونو دیوه زړه لړ په څېر لیدل کېږی چې په لو بدیځه ټوله نړۍ کښی د آخ ؤهب او جنګونو سره تماس نیسی.

دغه ډول اشعاروته (رومانس) ویلای شو داځکه چې د «رومانس» کلمه هغه شعر او نکل ته ویل کېږی چې د لاتینی ژبی پر ځای درومانس د ژبی (فرنسوی) ایټالیائی، اسپا-

نیائی او داسی نور په یوه کلیوالی لهجی سره لیکل شوی وی چې په دغه صورت لږ غوندی جدی معلومیږی چې ځان ورته ورسوی.

په وروسته وختو کښی دا خبره خپل اهمیت څرګندکړ چې ددغه آثارو اساسی خصوصیت چې د مسائلو او حیرانونکی پېښو سره مېنه او علاقه ده، په ځان کښی نری.

ددغه اشعارو ډېر پخوانی شعر د شارلمان او د هغه ددربار سره تماس نیسی. دوی د نورو (رومانسو) سره د یونانی، رومی او تروجن د تاریخی او افسانوی قهرمانانو

په باره کښی. همدارنګه د «ارتر» برطانوی شاه اود هغه دسردارانو په ماجرائی نکلونو سره وړاندی ځی؛

په دې ځای کښی زموږ وینا د دوهمی ډلی په باره کښی ده:

پخوا تر هغه چې دا بحث شروع سی باید ووایو چې د پخوانی کلاسیك له آثارو

څخه د کلتور او ثقافت له پراختیا څخه د نظم نثر منځ ته راتلل څرګندیږی چې په ۱۱ پېړۍ کښی شروع او په ۱۲ پېړۍ کښی ښه پوره وده وکړه.

په همدغه دوره کښی پوهنتونونو ډېره ښه ښه غوره کړه. په فلسفه کښی د پوښتنی او تنقید روحیه پیدا شوه او اصلاحات پکښی وشول، دا د منطق او ماوراءالطبیعی فیلسوف آبیلارد زمانه وه.

په همدغه زمانه کښی د زده کړی لپاره لومړی ځل یونانی او رومی یو شمېر کتابونه ترجمه سول؛ همدارنګه د (جان سالیزبری) اود ډېرو نورو لایقو متفکرینو اود یونان د پوهی د انکشاف دوره حسابېږی.

سرودونه هجویات او رومانونه په ډېره پیمانه منځ ته راتلل خو دومره خبره ده چې هجویات او سرودونه چندانی دوام ونه کړل او رومانونه پخپل حال پاتی او منځ ته ولاړل.

د منځنی پېړۍ د جنګونو په زمان ډېر او تر ټولو لوی د تروی د رومانس د کلاسیك موضوع وه چې په ۱۱۶۰ کال کښی د فرانسی د شمال ختیځ سیمی شاعر (بنوادسنیت مور)

په وسیله لیکل سوی او ددغه کتاب لیکونکی عقیده درلوده چې دا کیسه د هغه سړی نه چې تر «هومر» ئی زیات معلومات درلود اخیستی ده.

د تروجن ښځه بېگناه ښځې او یونانیان خطرناك او تېری کوونکي ښودلي دي سربېره پر هغه داسې عقیده لري چې د انسانانو په جګړو کښې دار باب انواع دشامليدلو په باره

کښې د هومر په شان ټېر وتلي نه دی، داسې د تروی د بربادی د تاریخ د کتاب لیکوونکی «ډاریس» نومېږی، څنګه چې د هغه ساده لاتین څخه څرګندیږی د نوموړی دغه اثر د

لاتیني ادبیاتو د انحطاط په دوره کښې لیکل شوی یو خیالي اثر دی چې چندانی باوری او مستند نه دی .

دغه زماني یوه بله ښېښه هم شته، مګر نه د تروی په باب کښې، دهغه په شان تاریخي رومانونه په نوی پېړی کښې هم لیکل شوی دی، لکه د تولستوی جنګ او سوله چې

غواړی دا خبره ثابته کړی هغه چاچې په حقیقت کښې پر روسیه باندی حمله کنترول او اداره کړله ناپلیون نه ؤ .

«ښوا» لکه د «ډاریس» د کتاب په شان د یو بل کتاب د تروی د جنګ یادداښتونو په نامه د «پکتیس» اثر څخه ئې هم استفاده کوله دغه دوهم اثر تر لومړی اثر ډېر ښه معلومېږی

خو ددغه مستندوالی هم نه دی معلوم، داچې ښوا ددغو او غیر مستندو کتابونو څخه ولې استفاده کوله او نه دده استفاده د نوموړی کتابو د قدر او اهمیت سبب شو پوره نه ده

څرګنده خو د معلومات له مخې دغه کتابونه ساده او آسانه لیکل شوی وه او «ښوا» هم کلاسیکي معلومات نه درلود سربېره پر هغه د یو شاعر له پاره د «ډاریس» او «ډیکتیس»

خیالي او رومانتیك سبك ډېر جالب او زړه وړونکی ؤ، که څه هم ښوا ددغه کتابو له ماخذ څخه کوم لیاقت او ابتکار له ځانه نه دی ښودلی خو بیا هم نوموړی کتابونه ډېر

مشهور او د قدر وړ وګرزیدل؛ په حقیقت کښې د «تروی رومانس» تاریخ او کلاسیکه کیسه د اروپا کلتور ته بیا ورو پېژندله.

دغه پېژندنی او ربط ور کولو اساسی ټکی د نوی زماني سره د «ګریکوروس» کیسه وه، داهغسې کتاب ؤ چې د ۱۳ پېړی د لوستونکو د ذوق سره سم لیکل شوی او په

خیالي شعرونو کښې ئې د یو نوی ښوونځی په شان ؤ، د «تروی رومانس» په ډېرو ژبو ترجمه شوی او ډېر لیکوال د هغه پر پل باندی تللی دی .

ددغه کتاب په څېر تاثیری او په زړه پوری دده خپل کتابونه ؤ خصوصاً د تروی د بربادی د تاریخ کتاب چې وروسته په ۱۴ پېړی کښې د کایدو د کولمنیس په قلم لیکل شوی

او په هغه کښې ئې د ښوا نوم هم نه دی یاد کړی ډېر نفوذ ئې پیدا کړ، نوموړی کتاب د افریقا په قاره کښې بې ساری نفوذ او موفقیت حاصل کړ اود تروی له رومانس

څخه ډېر زیات په ایټالوی، فرانسوی، الماني دنمارکي آیلنډي، چك، سکاټلنډي او انګلیسي ژبو سره ترجمه شویدی، د تروی کیسه ددوو لارو څخه بریتانیا ته ورسیدله.

۱- د ۱۳۴۰ کال په شاوخوا کښې یو کاچو د فیلوستراټو په نوم یو شعر چې د تروی د رومانس یو صحنه ئې شرح ور کوله لیکلی ؤ داشعر چې د تروی د یوې تجلی په باره کښې

چې د یوه یوناني په کمپ کښې وه ویل سوی او چاسر هغه اقتباس کړی د خپل کتاب د موضوع نوم ئې «ترولوس» او «کریسایډ» وټاکه .

۲- د یو لاتیني کتاب فرانسوی ترجمه په دغه باره کښې په ۱۴۷۴ کال د «ویلیم کاکستن» په وسیله په انګلیسي ژبه ترجمه شو

ښاغلی «نوميالی»

# د سقراط تربيوي تجاهل

يوه سړی په بل پسی خورا په چټکی ځغستله، سقراط ئی د ليری په سترګه شو ځغلېدونکی سړی ورناری کړه چی: هـا تښتېدونکی راوګرځوه.

مګر سقراط پدې ناره پسی سر ونه ګرځاوه او نه ئی د هغه سړی و نيولو ته هڅه وکړه.

ځغلېدونکی سړی چی تر سقراط پوری راورسېدی، نو ئی و سقراط ته وويل:

آيا غوږ نه ؤ ری چی زما نارې دی‌اروېدلی وای، او هغه تښتېدونکی قاتل دی راګرځولی وای.

سقراط وويل: قاتل يعنی څه؟.

ځغلېدونکی: ناپوه! قاتل هغه چاته ويل کېږی چی وژل کوی.

سقراط: اوس وپوهېدم يعنی قصاب.

ځغلېدونکی: ای بـد بخته بـی شعوره قاتل هغه څوك دی چی خپل همنوعه وژنی.

سقراط: ښه يعنی سپاهی.

ځغلېدونکی: آخ بی مغزه! قاتل هغه څوك دی چی خپل همنوعه په صلح او آرامی کښی وژنی.

سقراط: ښه نو جلاد ؤ.

ځغلېدونکی: اوه پدې نا پوهی! قاتل هغه دی چی خپل همنوعه په خپل کور بلکه په خپل بستر کښی وژنی.

سقراط: اوس پوه شوم، يعنی طبيب.

ځغلېدونکی سړی ئی ښه سترګی کـړ او د خپلی ځغستا څخه را وګرزېدی او پر خپله تېره لاړ.

---

ښائی چی د «چاسر» د شعر دغه انګليسی ترجمه اود هومر خپل اثر په ترېلوس او کريسيډ کښی دالهام منبع ګرزېدلی وی.

نور رومانسونـه هم لکه د آنياس، تيز او اسکندر رومانسونه د زکلونو په عجيبو ځېرلو سره دمنځنی پېړی دخلکو دذوق او اشتها سره سم ترتيب اوجوړ شويدی.

لـوی فيلسوف ارسطو چی د اسکـندر ښوونکی ؤ، د «کاليتز» پنامه يـو وراره درلود چی په فتوحاتو کښی ئی د اسکندر سره ملګری کوله او د هغه د فتوحـاتو تاريخ ئی چی بشپړ نه‌دی په‌يادګار پرېښ'وده چی اوس له‌منځه تللی‌دی.

تر مـرګ وروسته اسکندر ډېـر ژر د فانتيزيانو لپاره ښه موضوع شو، په دې معنی چی دده عجيبی ماجراوی په ختيځ کښی د رومانتيك او خيالی کتابو نو موضوع وګرزېدلی.

ددغه اثر په‌شان د «جوليس والير» کتاب دی چی په هغه کښی اسکندر د هند د عجائباتو او ځينی نورو کيسو په باره کښی

ارسطو ته ليکلی ؤ؛ اوس هم د فرانسی د ګرزنيك په‌ځينو کليساګانو کی دارسطوعکسونه د هندی حوری نجلی‌سره ليدل کېږی.

عبدالهادی ( ا،ا )
د تاریخ پانه

د لښکرګاه د کتاب ځخه

# لښکرګاه



اوس د لښکرګاه یا لښکری بازار نوم ډیر او ریدل کیږی؛ ډیر خلک لښکرګاه ته ننګ راننګ لری، ډیر خلک بیا د لښکرګاه د آبادی خبری کوی .

د هلمند د ناوې د آبادی په پلان کښی اوس بیا لښکرګاه مرکزیت پیدا کړیدی .

ولی؟ دا ځکه چی لښکرګاه نوی ځای نه دی، بلکه زموږ د وطن تاریخی ځای دی چی له پخوا ځخه ډیر شهرت لری.

ښاغلی کهزاد زموږ د وطن مشهور مؤرخ او د لښکرګاه د کتاب مؤلف په یوه لنډ تاریخی بیان کښی لښکرګاه داسی معرفی کوی :-

لښکرګاه چی د بست په بغل کښی واقع ده د ۳۹۴-۳۹۰ هجری قمری سنی په حدودو کښی لومړی پلا د سلطان محمود غزنوی په امر او اراده سره آباده شوه، چی وروسته ئی زوی

(مسعود) د لښکرګاه آبادی ډیری کړې او بیا د دوی اولادې د لښکرګاه د ښو ماڼیو او مجللو آبادیو ځخه کار اخیست .

لښکرګاه د غزنی تر خرابی وروسته د غوری علاؤالدین د قهر او غضب په اور وسوه ځکه ترمیم شوه، بیا وسوځله او بیا ونیول شوه ترځو چی چنګیزی مغولانو د مځکی

سره یوشی کړه، او ګوډ تیمور د اتم هـ،ق قرن په اواخرو کښی د لښکرګاه د ولو او بندو په وېجاړولو سره نه یوازی د بست او لښکرګاه ژوندته خاتمه ورکړه بلکه په هغه سیمه کښی ئی د عمومی ژوند کمیله تو له کړه .

ددې بیان تشریح

یا د لښکرګاه لنډ تاریخ

هغه وخت چی امیر سبکتګین د سلطان محمود غزنوی پلار په سنه ۳٦٦ هـ،ق کښی په غزنی کښی پر تخت کښېنوست، نو ئی وغوښته چی خپل د حکومت دائره ارته کړی لومړی ئی د افغانستان شمالی ولایت خراسان او زمیندا ور په خپل تصرف کښی راوستل؛ پدغه وخت کښی بست او د هلمند منځنی سیمه د بست د ښار د دوو محلی حاکمانو په لاس

کښی وه، او هر یوه غوښتل چی د دغی سیمی امارت د هغه بل ځخه لاس ته کی.

د بست د ښار حاکم «طغان» نومېدی او ده د مخالف نوم «بای توز» ؤ.

بای توز غوښتل چی د طغان ځخه د دغه ذکر شوی سیمی حکومت و نیسی نو ورته پورته شو .

طغان دخپل حریف تاب نه درلودی مخ پر غزنی رهی شو، او د سبکتگین څخه ئی کومك وغوښتی .

سبکتگین په څو شرطو سره د طغان پر خوا شو؛ مخ پر بست راروان شو او بای توز ته ئی ماته ورکړه او طغان ئی بیا د بست امیر مقرر کړ، څکه چی وروسته طغان دخپلی

وعدې څخه مخالفت وکی نو خبره وجنگ ته ورسېدله چی په نتیجه کښی طغان او بای توز دواړو د سبکتگین دلاسه و کرمان ته فرار شول، او لدغه وخته څخه دهلمند منځنی سیمه او د بست ښار چی آباد او مشهور ښارو د سبکتگین دحکومت تابع شوه .

پدې وخت د کښته هلمند سیمی چی سیستان یا سجستان بلل کېدی او مرکز ئی زرنج ؤ، د محلی امیرانو له خوا اداره کېدی؛ دا امیران دصفاریانو له بقایاؤ څخه وو او د سامانیانو

دنفوذ په وخت کښی د هغو تابع وه، مگر کوم وخت چی غزنوی دولت قوت پیدا کی او سامانیان ضعیف شوه، نودغو امیرانو دخپل استقلال دعوه وکړه، او هغه وخت چی

سبکتگین په غزنی کښی د غزنوی کورنی اساس کښېښودی او تر ماوراء آمو او هلمنده پوری ئی دخپل نفوذ دائره ارته کړه .

نو په دغه وخت کښی د صفاریانو د پاته امیرانو څخه ابو احمد خلف ابن احمد په سیستان کښی حکومت درلودی .

کوم وخت چی سبکتگین د بست تر نیولو وروسته د هند په فتوحاتو مشغول ؤ، نو «خلف» نامی له موقع څخه استفاده وکړه او پر بست ئی حمله وکړه، مگر پسله هغه چی سبکتگین له هنده راو گرزېدی نه یوازی ئی د بست ښار څیښی و نیوی بلکه مالیات ئی هم څیښی و اخستل او وروسته ئی خلف و بخښی.

د سبکتگین د مړینی په وخت کښی «خلف» بیا د سر کښی خیال پیدا کی، د څینی ځایو لکه: پوشنج او قهستان په نیولو پسی شو .

په دې وخت کښی سبکتگین مړ شو، او زوی ئی سلطان محمود پر تخت کښېنوست .



سلطان محمود

سلطان محمود په (۳۹۰ هجری) کی د یوه لوی لښکره سره بست ته راغی او پر سیستان ئی حمله وکړه، او خلف ئی کلابند کړ، خو بیائی وبخښی؛ په دغه پول څو واره نور هم (خلف) سر کښی وکړه او سلطان محمود په بیا وبخښی څو آخر ئی گردېز ته واستوی او هلته مړ شو او پر کښته هلمند یا سیستان هم د سلطان-محمود په وخت کښی د غزنوی دربار تابع شو

نو دغه وخت (۳۹۰-۳۹۴ھ) چی سلطان محمود دخلف سره مواجه شو او سیستان ئی و نیوی نو ددې دپاره چی سیستان وساتل شی د یوې عسکری چوڼی د آبادولو په فکر کښی شو

هغه ؤ چی دسیستان په مخ کښی ئی د بست څخه یو فرسخ لیری د هلمند پر غاړه لښکرگاه آباده کړه .

د سلطان محمود تر مرگ وروسته بیا سلطان مسعود په لښکرگاه کښی ډېری آبادی وکړې او ښه ئی ارته کړه او د غزنویانو په ټوله دوره کښی لښکرگاه آباده وه، خو هغه وخت چی غوری کورنی عروج وکی او غزنویانو ته ئی ماته ورکړه .

نو علاؤالدین جهانسوز غزني ونیوی او وې سوځی؛ بیائی د بست وخواته مخ کی او هغه آبادی چې غزنوي پاچهانو په دغه سیمه کښې کړی وې، ټوله ئې خرابی کړی چې

په دغه خرابیو کښې لښکرګاه هم ورانه شوه (۵۴۵ هـ) خو بیا هم لښکرګاه تر لس، پنځلس کاله خرابي وروسته د غور یانو د نورو پاچهانو له خوا بیا ترمیم شوه او د ګذارې وړ وګرزېدله.

د لښکرګاه دوهمه خرابي د مغولو په وخت کښې پېښه شوه چې یو پلا چنګېزي لښکرو پایماله کړ؛ او بله پلا ګوړ تېمور په (۴۸۷ هـ) د هلمند ټوله شاوخوا تر سیستان پورې داسې

خرابه کړه چې بیا چا ژوند پکښې ونه کړ او له هغه وخته تر اوسه خرابه ده ځکه تېمور د بست او زرنج ټوله ولې او بندونه خراب کړه او د هلمند اوبه ئې له دغو آبادو ښارو

څخه قطع کړی چې په دغه سبب د انسان او نبات د ګذارې امکان ورك شو؛ ښه باغونه او زرغونې ځمکې وچ دښتونه شوه.

د وچوبې له جهته د خلکو ژوند سخت شو. زرنج، بست او لښکرګاه متروك شوه او خلکو کوچ وکړ.

لنډه دا چې د هلمند د غاړې مشهور او معمور ښارونه چې یو وخت د افغانستان پر نفوسه برخې وې. د چنګېز او تېمور تر خرابیو وروسته داوبو د نه رسېدلو په سبب وران او

خراب پاته شول، څو اوس بیا د متبوعه حکومت په توجه د هلمند د ناوې او د لښکرګاه په آبادۍ ګوتې پورې شوې او امید سته چې

بیا ژر خپل پخوانی جلال ته ورسېږي او د افغانستان د آبادو او سرسبزو سیمو په قطار کښې به خپل ممتاز موقعیت وساتي.

د لښکرګاه د اوسني ښار عمارات د پخواني

زوړ عمارات و شمال ته په ډېر ښکلي او ماډرن صورت شروع شویدي چې اوس بیا لښکرګاه د هلمند د غاړې مهم مرکزي ښار دی.

د «مړوند» ټاکنه

# افکار

د ژعدې ماتول:
چا چې یو وار عهد مات کړ اضافه تر دې باید اعتماد پرونه کړه شي. (شکسپیر)

پټه خوله:
د دې لپاره چې نور کسان خاموشي ته را و بولې، لومړی باید تاسو پخپله پټه خوله شی. (سنیکا)

ستر خدمت:
که یوه پردی سړی ته یوه ګوله ډوډۍ به دې عقیده ورکړی چې ټوله انسانان یو د بل ورونه دی، نو بشري ټولنې ته مو ستر خدمت کړیدی. (....)

عدل:
عدالت د یوه کامل انسان د شرافت پانګه ده ځوك چې د دغې نیکې عادې خاوند وی کامل انسان، او ځوك چې د هغه فاقد وی ناقص انسان بلل کېږي. (....)

دوستي:
هیڅ غلیم تر ناپوه دوست خطرناکه نه دی. (فونتن)

په دوستي کښې واقعي خوند سته، بدبینه کسان دا لذت نشي ځکلای. (....)

رحم:
پر هغو باندې چې پر ځمکه ژوندکوی رحم وکړه څو هغه پرتا باندې رحم وکړي چې په آسمانو کښې دی.

د لرغون پېژندونکو د مؤسسې غړی: محمد احسان «آرام»

⋘ د تاریخ یوه ګوښه ⋙

# د چهلغور د غونډۍ کیندنې

د چهل غور غونډۍ د کندهار د ولایت د پنجوائی د ولسوالۍ په یوه برخه کښې واقع ده.

مخکښې تر دې چې د چهلغور د غونډۍ د کیندنو په باب چې هلته د جیمز امریکائی او زما له خوا کړی شوې وليکو د کیندنو مفهوم د یوې مقدمې په توګه بیانول غواړم.

د انګلیسی نامتو لرغون پېژندونکی د متل له مخه چې خپل د نړۍ د لرغون پېژندنې په کتاب کښې ئې لیکلی دی:

د کیندنې معنې د خلکو کشفول په هغه دوره کښې دی، نه د آثارو په لاس راوړل. ✡

## سروې:

د یوه لرغون پېژندونکی د کار شروع چې د هغه په واسطه ټولای شی ځان ته معلومات پیدا کړی داسې وی:

په نظر کښې نیول شوی حوزه یا غونډۍ په کومه دوره پورې اړه لری بنائی



د چهلغور د کیندنو حوزه چې درې نیم زره کلن تاریخ لری

د جیولوژیکی تصادف او یا د باران په واسطه آثار د خاورو څخه راوتلی وی په منځنۍ یا ذروستۍ برخه کښې واقع وی مطالعه کړی.



د برونز د دورې خاورین لوښی، یوه برین مهر او یو د برونزو د لاستی سره چې د چهلغور په سیمه کښې لاس ته راغلی دی.

✡ په دې اساس هر لرغون پېژندونکی چې غواړی یوه سیمه تر کیندنې لاندې ونیسی، لومړی باید څیړ شی چې څه ډول سروې وکړی او څه ډول کیندنې شروع کړی.

بیلې، بیلې لرغونې دورې دیو او بل څخه جلا کړی څه رنګه آثار په مکمل او اصل شکل سره د سیمې څخه راوباسی.

وروسته تـر دې چې ورته ثابته شوه چې خپل هدف ته رسېدلی دی په کار شروع کړی ، عموماً تاریخی ځایونه د پورته ځخه د ښکته وخوا ته کیندل کېږی .

د لرغون پېژندونکی دپاره چې غلطی ونه کړی د کار لومړی برخه دی یو پر یو یادوه پردوه خط کشی کړی ، ددې دپاره چې کلچرونه ځنې ګډ نسی باید په لیر بندی شروع وکړی .

ددې دپاره چې د لیر آثار د پټ سره ګډ نسی لومړی باید پټ پاک کړی بیا په لیر پسی وګرځی . په هغه ځای کښې چې هر وخت دخاورو رنګ بدلشو ، لرغون پېژندونکی بایدژر دلومړی طبقی آثار راغونډ او بیا دراتلونکی آثارو په راغونډولو پیل وکړی؛ په دې ډول د تېرو دورو په کلچر او ژوند کښې مغالطه نه پېښیږی .

که دغه تیری شوی دورې سره ګډی شوې نود کیندنو په لاس راغلی آثار مات شوه؛ په نظر کښې نیول شوی آثار او معلومات لاس ته نه راځی .

اوس هغه کیندنی بیانوو چې د امریکائی «جیمز» اوزما له خوا په چهلغور کښې شویدی .

## چهلغور :

موقعیت ئی: دشمال لهخوائی قلعهسید . دجنوب لهخوائی دسلوات غونډۍ یا دسلوات غار ، د ختیځ لهخوائی د مهاجرینو غونډۍ اود لوېدیځ لهخوائی بالاده پرته ده .

په تېرو لسو کلو کښې دغه سیمه د نورو سایتونو سره چې پر شاوخوائي راګرځېدلی دی ، دامریکائی لرغون پېژندونکو لهخوا سروی شوی وه اود لومړی ځل دپاره «جیمز شیفر» ددې غونډۍ په کیندنو او څېړنو پیل وکړ .

د نوموړی دورې کیدنی د ژړو (برنز) په دورې پوری اړه لری .
ددې غونډۍ کیندنی عمودی شروع شوې او وروسته له یوې میاشتی د دېوالو اود هغه دخونو د ودانولو دطرز په موندلو بریالی شوو . دغه دېوالونه دپاخه دای ځخه جوړ شوی وه ، وروسته

د کیندنو په وخت کښې سپین خطونه مخ ته راغله ، هر کله چې مو خطونه یو ځای کړه د ښېښتو شکل ئی غوره کړ ، خو څرګنده سوه چې د زمانی په تېرېدو سره ئې د سپین خط شکل غوره کړیدی ، او زموږ کارئی یوه اندازه آسانه کړ .

دا دېوالونه په مختلف شکل سره دی چې یوه کوټه د بلې سره

نښلوي موږ وکولای شو چې د نوموړی سیمی ځخه لس کوټی لاس ته راوړو .

اوس په دغه ډول پوهېدای شو چې دغه دېوالونه په کومه دوره پوری اړه لری .

کشف شوی آثار لکه تیکر پاکو دری د افغانستان دژړو ددورې په څېر مزین شوی پیکه نصواری رنګ لری .

د برنز د نوکلـرونکی ټوټی قلمونه چاقوګان او غوټه چې د ډېـرو ځخه جوړی او ډېـری ښکلی دی .

دغه آثار چې موږ ددغی سیمی ځخه لاس ته راوړل ثابته شوه چې دېوالونه او دغه رنګه خپله سیمه د برنز په دوره پوری اړه لری .

باید وویل شی چې موږ دلته ۳۰ قبرونه هم پیدا کړل چې د قبر پیدا سوی آثار هر یو کولای شو د برنز ددورې ځخه وبولو ؛ آثار لکه : غمی ، ګوتمی په سره رنګ کشف شویدی ښائی چې عقیق وی او په بېلو بېلو رنګونو کوچنی او لوی مری ددغه ځای ځخه لاس ته راغلی دی او ددغو څېړنو او کیندنو ځخه څرګندېږی چې د چهلغور غونډۍ یونیم زر کاله دمخه تر میلاد دژړو په دوره پوری اړه لری .

محمد نبی «احمدوال»

# د قدرت کار نامه

## یعنی

## د ساینس دنیا

قادر متعال(ج) چې دخپل قدرت په لړ کښې د مځکې هستي وغوړوله. دمځکې په هستي کښې ئې دخپل حکمت رمزونه او اسرار ځای کړه.
یعني مځکه ئې دابتداء ځخه دخلقت د مرموزو او پټو اسرارو صحنه ګرزولې وه؛ دا د پاك خدای(ج) دقدرت هغه کار نامه وه چې دانساني خلقت مخکښې د مځکې هستي ئې د انسانانو د ژوند لپاره آماده کړې وه.

په ښکاره توګه دمځکې هستي د ډول، ډول عناصرو ځخه ترکیب شوې ده او هر عنصر د آتمي اجزاؤ ځخه تخلیق شویدی.

هر آتم د شمسي عالم په څېر یوه کورنۍ ده چې د پروټون پر هسته باندې نسا یټرونونه خپل منظم حرکت ته دوام ورکوي.

آتم د ابتداء ځخه د خلقت د مځکې پیا تر اوسه پورې په دغه ډول ؤ او په دغه ډول به وي؛ ټوله عناصر ځانګړې خواص او ځانګړې آتمونه لري اود هر عنصر آتم ځان ته خواص ځان ته وزن لري.

دعناصرو ترکیب هم په آتمي قرارداد پورې اړه لري چې دا ترکیبي قرار-دادونه او د فارمولاوو تشکیل د پاك خدای (ج) د قدرت او حکمت هغه نمونه

ده چې د ساینس عالم سر په سجده او غاړه په تسلیم ور ته ایښې ده، چې دا ترکیبي

عناصري قراردادونه او د فارمولاوو ډولونه دمځکې

دتخلیق د طرحې سره یوځای مطرح شویدي ، یعني د عناصرو دترکیب، تحلیل،

امتزاج، دفع طرد، سرعت، حرکت، سکون تخریب،

تراکم ، حلول ، تجزا او

نور داسې قوانین دانسان دخلقت ترمخه منځ ته راغلي

او دې قوانینو په لړ کښې

د انسان د موجودیت د

ترمخه وجود درلود.

دساینس او تکنالوژۍ
دنیا ته توجه

هغه وخت چې پاك پروردګار (ج) د خپل مرحمت په لړ کښې د مځکې پر مخ د انسانانو موجودیت ظاهر کړ او انسان ته ئې دعقل فراست او ادراك ملکه وسپارله.

انسان د پاك پروردګار(ج) دحکمت صحنو ته متوجه شو د خپل تشبث او تجسس او د خپلو ورکړه سویو ملکو په مرسته ئې

هغه رموز او پټ اسرار چې د مځکې په صحنه کښې پټ پراته وه کشف او معلوم کړه او پخپله ګټه ئې کار ځنې واخیست.

مثلا هغه وخت چې انسان د مځکې پر مخ قدم کښېښود د خپل ژوندانه لومړې د احتیا-جاتو سره مخامخ سو، د دغه احتیاجاتو د رفع کولو د پاره انسان خپل تشبث ته دوام ورکې.

چې د خپل تشبث په لړ کښې ئې د ساینس او تکنالوژۍ لومړۍ مرحله منځ ته راوړله.

ځرنګه چې د انسان موجودیت بیله انساني فعالیت څخه امکان نه درلود انسان د ګرمۍ، یخنۍ، لوږې، تندې او نورو انساني احتیاجاتو سره مخامخ ؤ.

ددغو عواملو د منځه وړلو لپاره انسان د کور جوړول، د کالو جوړول، د کښت کرونده او د ځاګانو کیندل لازم وګڼل.

ددغو کارو د اجرا دپاره ووسایطو له اړ وه دا وسایط لکه: کلنګ، تبر، تېشه، بېلچه، اره او نور داسې؛ ددې وسایطو د جوړولو دپاره د ساینس او تکنالوژۍ علم لازم ؤ.

انسانانو په اول کښې د خپل عقل او ادراك په مرسته دغه علم د قدرتي مظاهرو څخه کشف کی او په کار ئې واچوی؛ او خپل وسایط ئې یو په بل پسې د ساینس او تکنالوژۍ په مرسته تیار کړل او په کار ئې واچول.

موږ پدې پوهېږو چې د ساینس او تکنالوژۍ دنیا د انسان د موجودیت تر دنیا مخکښې د قدرت په څېر د نړۍ د عناصرو په عالم کښې وجود درلود.

یعنې د ساینس او تکنالوژۍ دنیا د انسان د موجودیت تر دنیا قدامت لري.

هغه وخت چې انسانانو خپل موجودیت قائم کی د قدرت د مظاهرو څخه ئې د ساینس او تکنالوژۍ علم د خپلو ګټو لپاره منځ ته راووست.

ځرنګه چې موږ مخکښې ولیکل چې انسانانو کلنګ، تبر، اره، تېشه، بېلچه او نور وسایل د خپلو احتیاجاتو د رفع کولو دپاره جوړ کړل.

ددغو وسایطو د جوړښت لپاره فزیکي عوامل، کیمیاوي عوامل، بیولوژیکي عوامل، ژیولوژیکي عوامل او تکنالوژیکي عوامل په کاردي؛ د مثال په ډول: اوسپنه دوا کسیداز څخه خالصه کول کیمیاوي عوامل غواړي. اوسپنه ټکول او پتیله ځنې تیارول فزیکي عوامل غواړي.

د سکرو جوړول بیولوژیکي عوامل غواړي د ځاګانو کیندل او ډبرې ماتول ژیولوژیکي عوامل غواړي.

د وسایطو په واسطه انرژۍ مصرفول تکنالوژیکي عوامل غواړي.

ددغه ډول عواملو د یوځای کېدو څخه موږ د ساینس تکنالوژۍ مفهوم اخلو.

ګرانو ورونو!

د نن ورځې ساینس او تکنالوژۍ او د ساینس پرمختګ تګ باید موږ په تحیر کښې وانه چوی.

ولې چې دا د پاك قادر خدای (ج) د قدرت کارنامه ده چې د انسانانو د خلقت تر مخه ئې د مځکې په هر عنصر کښې ځای کړی وه، او هر عنصر ئې دود کړه شوی خواصو له مخې د نورو څخه بېل کړی ؤ، یعنې ټول عناصر ئې په بېلو، بېلو ډولو تخلیق کړي دي او هر عنصر ئې د اټمو څخه جوړ کړی دی، او هر اټم ئې د «پروتون» او «نایترون» څخه تشکیل کړی دی، چې نن ورځ انسانان د قدرت د مظاهرو څخه د ساینس او تکنالوژۍ په دنیا کښې ددغو اټمو څخه استفاده کوي او خپلې جوړې کړې سفینې اوراکټونه مدار ته رسوي.

تاسې پدې پوه شئ چې د اټم قدرت د مځکې د خلقت سره یوځای تخلیق شوی دی، او د ابتداء څخه د خلقت په اټم کښې دا قدرت اېښوول شوی دی.

یعنې دا هغه خدایي قدرت دی چې اټم ته ورکړه شویدی

اې نن ورځ انسانان د هغه څخه استفاده کوي.

د برق (برېښنا) موجونه د راډیو موجونه، د تلویزیون موجونه د راکټانو سوق کېدل، و مدارته د سفینو رسېدل او نورداسې ساینسي کارنامې چې د اټم پر انرژي بناء شویدي د پاك خدای (ج) د قدرت د کارنامو څخه دي چې انسانانو د خپل تشبث له مخې د پاك خدای (ج) د قدرت په مظاهرو پیدا کړي دي.

تاسې د مضمون د تذکاره څخه پوه سواست چې د ساینس او تکنالوژي دنیا د پاك خدای (ج) د قدرت د تظاهرو دنیا ده چې هر څومره ساینس وسعت پیدا کوي هغومره د پاك خدای (ج) پر قدرت باندې انسانان علم پیدا کوي اود پاك خدای (ج) عظمت او جلال انسانانو ته هر څرګندېږي او پوهېږي چې پاك پروردګار (ج) په څومره حکمت او علم سره دا د خاورو نړۍ پیدا کړې ده او په هر جز کښې ئې څومره علم ځای کړی دی.

بې له هغه چې انسانان

د علم الفراسته الحدیث څخه مترجم «غروال»

## د نړۍ د مشهورو شاعرانو د مرګ نېټه

۱: هومیرونس یوناني شاعر د میلاد څخه ۱۰ قرنه ترمخه مړ دی.

۲: شکسپیر انګرېزي شاعر په ۱۶۱۶ کال کښې مړ دی.

۳: جان ملټن انګرېزي شاعر په ۱۶۷۵ کال کښې مړ دی.

۴: فرجل د لاتیني ژبې شاعر په ۱۹ ق م کال کښې مړ دی.

۵: شیلله د المان مشهور شاعر په ۱۸۱۵ کال کښې مړ دی.

۶: لارډبیرون انګرېزي شاعر په ۱۸۷۴ کال کښې مړ دی.

۷: «الیزابته» دا شاعره ښځه په ۱۸۶۱ کال کښې مړه ده.

۸: دانتې د ایټالیې لوی شاعر په ۱۳۲۱ کال کښې مړ شویدی.

۹: اډ کارا امریکائي شاعر په ۱۸۴۹ کال کښې مړ شویدی.

۱۰: پرنس د انګلستان مشهور شاعر په ۱۷۹۶ کال کښې مړ دی.

۱۱: توماس مورد دا انګرېزي شاعر په ۱۸۵۴ کال کښې مړ شوی دی.

د پاك خدای (ج) علم او حکمت ته سر په سجده کښېږدی د بل مفهوم درك نسي کولای؛ حقیقتاً چې پاك پروردګار سزاوار د سجود او د لوی عظمت او جلال خاوند دی.

د پاك پروردګار (ج) علم او حکمت ته انتها نسته او د خپل قدرت کارنامه ئې د لوی کائنات په دفتر کښې و ټولو مخلوقاتو ته عرضه کړېده چې پدې اړ کښې انسانانو هم خپل بیعت او سجود د عاجزۍ په توګه وړاندې کړی دی په آخر کښې د انسانانو له پاره د خدای (ج) څخه سمه لار غواړم والسلام.



## پښتې خبرې

شجاعت د احتیاط وروسته د سعادت یو مهم شرط دی.

که شته من یاست، همرسته وکړئ؛ او که شته من نه یاست نو تسلي ورکړئ.

هر څوك چې د نورو د خیر او سرلوړۍ د پاره کوښښ کوي په حقیقت کښې ئې د خپل سعادت لپاره لاره پاکه کړېده.



## چیني متل

که د ډېر عمر او تجربې خاوند یاست نو نصیحت وکړه، او که ځوان یاست نو د نورو نصیحتو ته غوږ ونیسه.

کندهاري رشاد

# د اوښکو څاڅکي

آ د اوښکو لطيف څاڅکي ! — څه تاثير نشته په تا کښې
نه دې روح د مينې يو کړ — نه دې درد ومونډ په چا کښې
نه دې څوک ياځور کار ته — نه څه جوش شته کومه خوا کښې
نه څه عشق او حرارت شته نه دې هيڅ يو شور وموند
نه سينو کښې هيجان شته نه دې ورونو کښې اور وموند

ماول ته به زړونه نرم کړې — ګوندې لږ سره نژدې شي
جدائي به تر پښه پاڅي — له پردو بې مينې پرې شي
بيا به بيرته سوز و ساز وي — د بېلتون روی به مړې شي
هم هغه خوب و خيال دې نه څه سوز نه څه ويښتوب شته
نه نهضت نه اتحاد دې نه د مينې لېونتوب شته

مينه نشته يو له بله — فقط کرکه او نفرت دې
قومي پښو و يو بل ته — دغه څه رنګه اخوت دې
آفرين مو پر تاثير شه — اوښکو ستاسي دا خدمت دې
اغيزه د نارو نشته اثر نه لري ژړا هم
نه هغو له خوبه ويښ کړو نه څه ګټه لري دا هم

# د څاڅکي جواب

که له زړونو څخه را زېږم — بيرته زړو ته ور تو نېږم
د دښت کاڼي به درمات — که له سوزه پيدا کېږم
اور به بل کړمه په زړو کښې — وار په وار پسې تودېږم
فقط سېل د تاثير يم چې بهېږم په ګرېوان کښې
اغيزه کښې مې نقص نشته ته څه سوز مومه په ځان کښې
له ما وارو دا سړيو ! — په ژړا کښې توپير شته
د دردمنو په لمن کښې — اوښکې نه دې جواهر شته
چې د زړه له تاوه زېږي — له هغو پر زړو تاثير شته
هيڅ مې لار نشته و زړو ته (تقليدي ژړا) مې مومي
که دې سوز راسره ملوای ما څيرل د زړونو کومي
چې پر توښ راولم زړونه — موثر نه يم نو څه يم ؟
يو بڅرې يم سوځونکي — زه د اوښکو څاڅکي نه يم
ويلي شوی يم له غمه — يا! بڅرکې نه يم زړه يم
رقت واړه له ما زېږي که د زړه له تاوه پاڅم
بل ځای نه لرم بې زړونو له باڼونه چې را څاڅم

د ټاگور اثر

# دغوټۍ عطر

دغوټۍ عطر و نو ناری کړی چې آه د پسرلی مستۍ ورځې تیرېږي او زه په خپلو پاڼو کښې بندی یم .
ای کوچنوټۍ هستي بې تابي مه کوه ستا شتمنی به ټوله ښکاره شي او ژر به د گل په شانې وغوړېږې او کله چې ته دخوانی او زلما په ټاپي کښې مړاوی سې وروسته تر تا بیا پسرلی راتلونکی دی .
عطر سره و ښوزېدی او دغوټۍ په غېږ کښې ئې ناری کړی .
چې آه ساعتونه تیرېږي او زه لا تر اوسه نه پوهېږم چې چېری ځم او څه شی غواړم .
ای وړوکی هستي بلغاکې مه وهه .
د پسرلی بادونه ستا تر هیلو د مخه راروان دي تر څو چې ستا تقدیر بدل نه شي ورځ د ماښام په تیاره کښې نه ورننوزی .
راتلونکی زمانه وعطر ته تیاره ښانته ایسي او ځکه د زړه له دره وائی آه که زه ندوون معنی نه لری نو داد چا گناه ده ؟
کم سړی کولای شي چې ووائی زما وجود څه شي د پاره پیدا شوی دی ؟ مترجم «ریدی»



د گوئیټه اثر

# کوم زیور له خوښونکی دی

دهغی ځوانی نجلی په ځیر کتن چې تاسی په هوس ځان ته بولی او هم دهغی مېخواری نجلی سترگی چه دشرابو جام ئی په لاس کی وی دواړه زړه وړونکی دی او هم د بادارانو سلام چې وخپلو مزدرانو ته یی ورواچوی او هم دمنی د لمر وړانگی چې بدن په تودېږی اما تر دی ټولو هغه نگاه زړه خوښونکی ده چې یو لویدلی ستاو خواته لاس در اوږد کی چې څه صدقه ورته وا خلی .
ښه و هغه ته وگوره او د حق شناسی کتنه او د شوق او خوښی خاطرئی ووینه چې هیڅکله د ی صدقه ورکول هیر نه سی . دپیغلی «فریدی» ترجمه

مترجم - س

# ادبی مکتبونه

کلاسیزم ( Classicism e )

د کلاسیك کلمه صفت دی چې د لاتینی کلمی کلا یکوس (Classicus) چې دلمړی درجی معنی لری اخیسته شویدی .
کلاسیك په وسیعه معنی پر هغه ملی او مملکتی اشعارو مشتمل دی چې دیو مملکت ملی افتخارات جوړوی پدی صورت نو د پخوانیو زمانو لیکوال او ادبا پدی لړ کی راوستلای شو که څه هم بعضی په کلاسیك پوری اړه نه لری او د کلاسیك څخه ئی مخالفت هم کړیدی .
اما د کلاسیك د کلمی حقیقی معنی د رومانتیك په مقابل کې استعمال شوی ده .
د کلاسیك او رومانتیك دوی کلمی چې د قرابت او نژدیوالی په سبب علاوه سره مخالفی دی .
کلاسیك هنر هغه د روم او یونان چې د ۱۸ قرن شعراؤ دغه هنر دخپل ځان د پاره سرمشق کړی چې د (رنسن) او په شعر کی (بوالو) انتخاب کړی دی دبوالو په عقیده شعر د ری برخې لری عقل ، سلیم ذوق ، طبیعت اما کلاسیزم هغه دی چې طبیعت د عقل سره تطبیق کی .

د غلام فاروق «انورزی» په قلم

# د هیواد د پیاوړی خطاط

## او محقق مؤرخ پیژندګلوی

**د افغانستان او ه قلمه پیاوړی خطاط استاد عزیز الدین وکیلی پوپلزائی**

استاد عزیز الدین وکیلی پوپلزائی د دولتی مطبعو د عمومی خطاطی آمرچی د ۳۲ کلونو په دی خوا د وطن په مطبوعاتو کښی پر له پسی خدمت کوی نوموړی د یکشنبی په ورځ د ۱۲۹۷ کال دوړی د میاشتی په ۱۶ نیټه د ۱۳۳۶ قمری کال د ذیحجی د میاشتی دلومړی ورځی سره سم د کابل د چاردهی د دیوان بیګی وکیل الدوله سردار عبد الله خان په کلا کښی زیږیدلی دی دده اصلی ځای کندهار دی بزرګوار نیکه ئی په ۱۱۸۶ قمری کال کی د اعلیحضرت تیمورشاه د دورا نی سره کابل ته تللی ؤ او بالا حصار ته ئی نژدی استوګنه غوره کړه نیکه ګان ئی چی ټول په سلطنتی دربار کی شامل او د لوړو منصبو نو خاوندان وه په کابل کی پاتی شول .

د کندهار د دغی لوئی کورنی د احوال څرنګوالی د درانی تیمور شاه د تاریخ د کتاب په دوهم ټوک کښی او د درة الزمان تاریخ د فرمانو نو ، مأخذ او معتبرو مدارکو سره بشپړه شرح ورکوی .



استاد عزیز الدین وکیلی

استاد وکیلی پوپلزائی د وکیل الدوله په تاریخی کلا کښی اوس هم استوګنه لری .

نوموړی د ۱۳۱۷ شمسی کال له اول څخه د عمومی مطبعی د خطاط په حیث مقرر شو .

د ۱۳۱۸ ش کال د مرغومی په میاشت د مطبوعاتو د مستقل ریاست له خوا د معاش په زیاتوالی د فنی خطاط په نوم پخپله وظیفه باقی پاتی شو ، بیا د ۱۳۱۹ ش کال د لیندی په میاشت د حقوقو او سیاسی علومو په فاکولته کښی د خطاط په صفت مقرر شو وروسته د ۱۳۲۱ کال د لیندی د میاشتی د لومړی نیټی څخه د پوهنی د وزارت د نشو و نی او روزنی د ریاست خطاط او دشپږو کلونو په اوږدو کښی د هغه وزارت د مطابعو د خطاطی کارونه ئی پای ته ورسول .

د ۱۳۲۵ ش کال د تلی د میاشتی په اوله د عمومی مطبعی د خوشنویسی متصدی او د ۱۳۳۱ کال د مرغومی په میاشت کی د هغی مطبعی د آرت او صنعت مدیر مقرر شو .

د ۱۳۴۳ کال دوږی په میاشت کی د کابل کاڼی د مدیر په حیث مقرر او دهغه ضرورت له مخی چی مطبعی یوتن لوړی درجه خطاط ته درلود په خپل فنی او مسلکی کار باندی باقی پاتی شو. وروسته بیا د ۱۳۴۴ کال دوږی په میاشت کی د دولتی مطابعو

د ادارت او صنعت عمومی مدیر او د ۱۳۴۷ کال په سنبله کی د خطاطی د عمومی آمر په حیث په دوهمه رتبه ترفیع وکړه چی تر اوسه پوری دغه خپله وظیفه لکه څنګه چی ښائی پر مخ بیائی

د دولتی مطابعو د مرکز او ولایاتو د اخبارو نو ټولی

سر لوحی، د پوهنی د وزارت دیپلومونه، تصدیقونه او بری لیکونه، د ترفیع او تقاعد کارتونه، تقدیر نامی پادشاهی اعلانونه، اعتماد لیکونه، د میلمستیا کارتونه جنتری او د کتابو او مجلو پښتی ټولی دده په قلم لیکل شوی او د محراب او منبر

ښائستونه هم ده رسم کړی دی او دده د ماهرو ګوتو محصول دی او هم د سلطنتی دربار د وزارت د خطاطی چاری د نوموړی د رسمی وظیفی څخه شمیرل کیږی او د خارجه چارو د وزارت د خطاطی ځینی مهم فرمایشونه هم په ده پوری اړه لری.

هغه مهرونه او ټاپی په رسمی دفترو کی لیدل کیږی او هم د انفرادی کسانو لکه مغازه لرونکی او درملتونو لوحی چی په مرکز کښی لیدل کیږی د هغو ټولو نوشتی دده د قلمی آثارو څخه دی.

د استاد وکیلی د نقاشی او خطاطی آثار لومړی ځل د ۱۳۴۷ کال د زمری په میاشت کی د کابل ښاروالی په سالون کښی او د دوهم ځل د ۴۸ کال د خپلواکی د جشن په ننداړتون کی د ننداری لپاره کیښښودل شول چی د هغه په لیدنه خلک حیران پاتی شول

چی د کابل ورځپاڼو د هغو په ستاینه کښی ډیری خپرونی وکړی

د ښاغلی عزیزالدین د دغه هنر نو آستاد دده خپل پلار حاجی نظام الدین خان د حضور ناظم او د افغانستان اقلیاتو پخوانی ناظر و چی په اوه کلنی کښی ئی نوموړی په ۱۳۰۶ ش کال کی د لیک او لوست سره آشنا کړ. خصوصی ښوونکی ئی په کوچنیوالی او ځوانی کښی ملا شرف الدین ملا محمد حیدر، مولوی جمال الدین کندهاری، ملا عبدالمجید ارغندهی، ملا عبدالرؤف، او قاری عبدالرازق خان وو چی له هغو څخه ئی عربی او دری کتابونه لوستل او حساب ئی زده کاوه.

څنګه چی په چارده‌ی کښی ښوونځی له وپلاری ئی انتظار کیښ چی خپل زوی په لس کلنی کی د کابل ښار په یوه ښوونځی کی شامل کړی. خو تر اړ ودوړ وروسته ئی د ځینو معاذیرو له کبله ئی و نه کړای شو چی په رسمی ښوونځیو کی خپل تحصیل ته دوام ورکړی

څرنګه چی ښاغلی وکیلی په ورکتوب کی د سالم شوق او پراخ فکر خاوند و

نو په خصوصی درسونو باندی د شخصی ښوونکو څخه په تیره بیا په لیک کی د خپل پلار تر سترګو لاندی په ډیر دقت سره لګیا شو.

دی وائی کله چی د رسمی تحصیلاتو موقع راته پیدا نشوه تر هغه وروسته ډیر خوښ شوم دا ځکه چی د ښوونځی د تعلیماتو په ترڅ کښی دا امکان نه و چی قلمی صنعت د بشپړتیا او اختصاص و مرحلی ته ورسوم. څنګه

چی تر ماښام پوری لیک کاوه پلار به می ویل د لوح و قلم پیدا کوونکی دغه جاویدانه دولت تا ته سپارلی ښائی قدر ئی و پیژنی او خپل خوږ ژوند په بی خبری سره تیر نکړی او ویل به ئی چی موږ له پخوا څخه د قلم ډوډی خوړلی ده او د قلم د نور نیو اولادونو ته ښائی چی د قلم خاوندان وی.

دعثماني دورې چاپي آثار چې د سراجیه په دوره کې د کابل له دربار څخه راټول شوي او د میر عبدالرحمن د لیک د قطعاتو او د قبالو او فرمانونو پاڼې به ئې په ډېر احتیاط زما په مخ کښې ایښودل .

دعبدالله زاهدي، شیخ محمد عزت او شیخ عبدالعزیز رفاعي د لیکونو د قطعاتو ښه والي چې د کوچنیوالي څخه زما په سترګو پاتې شوي دي نه مې هېرېږي .

دوه کاله مې د زرین قلم محمد اسحق خان څخه سر لیک اخیستل او خپل خط به مې د هغه په ملا حظه رساوه ترڅو چې ښځیله ئې معذرت وغوښت او ویل چې ستا لیک زما تر سوبې لوړ دی لازمه ده چې دخطونو په اقسامو کې د هغه د لویو استادانو او دعثماني د دورې طرز او روش تعقیب کړې .

استادو کیلي وائي د مهرونو او د ۱۸ پېړۍ د مسکوټاتو نقشونه، پخوانی فرمانونه، قلمي نسخې دخطاو تاریخ په هنر کې زما سره ډېره مرسته کړې ده او د ډول ډول کلکسیونو په راټولولو کښې هم ځان د خپل پلار د احسان تابع ګڼم .

او س چې د خطاو تاریخ هره پاڼه لیکم پلار مې د هغو توضیحاتو او کلماتو سره چې په هره برخه کې ما ته ښودل زما په سترګو کې حاضر وي .

او د دغه پلار ئې او استادي د حقوقو په احترام چې د وطن او پاچا د خدمت په لار کښې را باندې لري د هغه عکس مې په دولتي مطبعه د خپل کار په کوټه کښې مې ځړولی دی .

استادو کیلي چې د ۱۳۴۱ کال د لړم په میاشت کې د معظم همایوني اعلیحضرت له مبارک لاسه په اوه قلمي خطاط لقب سرلوړی شوی د دغه مطلب د اثبات لپاره داسې وائي .

په اسلام کې خطاوه ډوله دي چې د ثلث، محقق توقیع، ریحان، رقاع، نسخ او تعلیق په نومو سره منځ ته راغلي دي چې په اصطلاح سره اوه قلمه ویل کېږي او دعربو په ژبه خطوط سبعه او په دري ژبه هفت ګانه خطونه نومېږي .

د لیک د فني استادان د نسخ او تعلیق له خطونو څخه یو بل پهزړه پوري خط منځ ته راوړی چې اومړی د نسخ او تعلیق په نامه او وروسته دخبرو د اسانتیا لپاره د نستعلیق نوم ئې ورباندې کېښودل .

داووه خطونه عدونه چې په اسلام کښې قدسیت لري د اووه اصطلاح له هغه څخه مشهور پاتې شوی که نه وی دغه نستعلیق خط اتم دی

دعربي او خراساني دري دخطونو په اقسامو کښې هر څو مره چې مختلفي طریقې و منځ ته راغلې خو د اساس ئې هغه مشهور اوه خطونه دي نو ځکه په هغه نوم سره یادیږي او هغه قطعات چې زه په لاس کې لرم تر ۲۱ زره پوري عملاً لیدونکي ته ښیم .

کوفي خط هم چې په یوم سره یادشوي هغه هم د ځان لپاره او مختلف طرزونه لري چې زما د لیکونو بار چې هغه ثابتوي .

دهمایوني معظم اعلیحضرت د مبارک فرمان په اساس د ۱۳۴۳ کال د تلې میاشتې په ۳۴ نېټه د لومړي ځل لپاره د تاریخ دانجمن او د باختر آژانس له خوا (د افغانستان د اوه قلمي خطاط) لقب په رسمي توګه زما په نوم اعلان شو .

اوه قلمه یعنې د اسلام د اوو خطو لیکونکي: په افغانستان کې تر اوسه پورې چا ته دغه لقب نه دی ورکړه شوی .

پو پلزی و کیلي د ۱۳۳۷ کال دخپلواکۍ په جشن کې د مطبوعاتو د مستقل ریاست د تصویب په اساس د خطاطي د استاد لقب ګټلی دی .

دی وائي . د تورو او سپینو د تز ئینا تو په هکله

چې د طباعت د اختصاصي کارو څخه ګڼل کیږي پوره لاس لرم او د ښوونې او روزنې اصول سره سم دد یز این کار کولای شم ،

د خط او رسم په مختلفو اقسامو کښې هر څو مره چې یو تن رسام ماهر هم وي تر څو چې د طباعت په اصول ونه پوهیږي د هیواد د معارفو او مطبوعاتو احتیاجات نشي لیرې کولای او ښیځله د دغه عصري طباعتي فني نقاشي او خطاطي په صنعت سره افتخار لري ۰

استاد و کیلي پوپلزي چې د نقاشي او خطاطي په څنګ کې کوم بل کار تر سره کړي دي هغه د لسو مستند و تاریخي اثر و تالیف دی چې په دې ځای کښې یو ازې د هغو فهرست لیکل کیږي ۰

۱ - د دراني تیمور شاه تاریخ په دوه ټوکه کې (په ۱۸ پیړۍ کښې د افغانستان د ټولو افتخاراتو په شمول)

۲ - د دراني زمان شاه تاریخ ۰

۳ - د افغانستان د مطابعو او مطبوعاتو تاریخ ۰

۴ - په دوو وروستیو پیړیو کښې په افغانستان کې د لیك هنر ۰

۵ - اعلا دیوانونه (سلطنتي دفترونه)

۶ - د کندهار د خرقې شریفې تاریخ ۰

۷ - د افغانستان د لومړۍ امپراطورۍ وارث احمد شاه بابا ۰

۸ - د افغانستان د پاچاهانو او خلکو علاقه د (بیدل) د آثار و او شخصیت په باره کې ۰

۹ - د دولتي مطابعو د پاره د ځلور و زرو حرفونو مجموعه ۰

۱۰ - حیات عزیز (یعني اوسنی تاریخ په ځلورو ټوکو کې چې ۱۶ کاله د استقلال تر ګټلو را وروسته کلونه په بر کښې نیسي ۰

پوپلزي استاد و کیلي د خپلو خاطر اتو په لړ کښې هغه ټول انعامونه ، تقدیر نامې او تشکر لیکونه چې د ۴۲ کالو خدمت په دورو کې ئې اخیستي دي د ټولو ع افغان دور ځپاڼې خبریال ته داسې یادونه وکړه ۰

۱- د ۱۳۱۹ کال د چنګابښ په میاشت کې د همایوني معظم اعلیحضرت له حضور څخه د بخشش په اخستلو ۰

۲- د ۱۳۲۰ کال د مرغومي په میاشت کې د همایوني معظم اعلیحضرت له حضور څخه د بخشش په اخستلو ۰

۳ - د ۱۳۲۰ کال د مرغومي په میاشت کې د حقوقو او سیاسي علومو د فاکولتې څخه تقدیر نامه ۰

۴ - د ۱۳۲۱ کال د لړم په میاشت کې د حقوقو او سیاسي علومو د فاکولتې څخه تقدیر نامه ۰

۵ - د ۱۳۲۴ کال د مرغومي په میاشت کې تقدیر نامه او د معاش زیاتوالی د والاحضرت سردار محمد نعیم د پوهنې د وزیر او د صدارت د مرستیال له خوا ۰

۶- د ۱۳۳۶ کال د تلې په میاشت کې د همایوني معظم اعلیحضرت له حضور څخه د بخشش په اخیستلو ۰

۷ - د ۱۳۳۸ کال د تلې د میاشتې په لومړۍ نیټه تقدیر نامه او نغدي بخشش د والاحضرت غازي سپه سالار صدراعظم له خوا ۰

۸ - د ۱۳۳۹ کال د غبرګولي په میاشت کې تقدیر نامه نغدي بخشش د والاحضرت غازي صدراعظم له خوا ۰

۹ - د ۱۳۴۱ کال د وري د میاشتې په شلمه نیټه تقدیر نامه د پښتو ټولنې د ریاست له خوا ۰

۱۰- د ۱۳۳۳ کال د چنګابښ په میاشت کې تقدیر نامه او نغدي بخشش د والاحضرت سردار محمد داؤد صدراعظم له خوا ۰

۱۱ - د ۱۳۳۳ کال د تلې د میاشتې په ۱۸ نیټه د ریمه درجه تقدیر نامه د مطبوعاتو د مستقل ریاست له خوا ۰

۱۲ -د۱۳۳۸ کال دسلواغی په میاشت کی دریمه درجه تقدیرنامه دمطبوعاتو دمستقل ریاست لهخوا .

۱۳ - د۱۳۳۹ کال دمرغومی پهمیاشت کی نغدی بخشش دمعظم همایونی اعلیحضرت له حضور څخه .

۱۴-د کابل ښاروالی له خوا د پل خشتی دجامع جومات دشاوخوا کتیبو دلیکلو په نسبت پنځهویشتزره افغانی بخشش .

۱۵ -د۱۳۴۳ کال دسلواغی دمیاشتی په ۲۷ نیټه دعدلی وزارت لهخوا تقدیرنامه .

۱۶ -د۱۳۴۳ کال دکب د میاشتی په ۹ نیټه دننګرهار دکانال دریاست لهخوا امتنان لیك او نغدی بخشش .

۱۷-د۱۳۴۷ کال دچنګاښ په میاشت کښی دهمایونی معظم اعلیحضرت لهحضوره نغدی بخشش .

۱۸-د۱۳۴۸ کال دسلواغی دمیاشتی په ۱۱ آمه نیټه دریمه درجه تقدیرنامه داطلاعاتو او کلتور دوزارت لهمقام څخه .

هغه نښانونه چی استاد وکیلی پوهلزی دهمایونی معظم اعلیحضرت لهحضور څخه دهغو په اخیستلو بریالیشوی دی :

۱-دهنر نښان .

۲-دپوهنی نښان .

۳-دمینه پال لومړی درجه نښان .

هغه مطبوعاتی جائزی چی وکیلی پوپلزی اخیستی دی .

۱-د۱۳۳۵ کال دوری پهمیاشت کی .

۲-د۱۳۳۷ کال دسلواغی په۲۶ نیټه .

۳-د۱۳۳۸ کال دکب دمیاشتی په۱۹ نیټه .

څرنګه چی دهغه دآثارو او لیکنو څخه څرګندیږی په آخره درجه شاه دوست، وطن پالونکی او دوطن دلویانو قدرپیژندونکی دی . همدارنګه معارف پالونکی پاچا او دسلطنتی دربنی کورنی ددغه شخصیت او دهغه دآثارو موجودیت تهدقدر پهنظر ګوری .

ښاغلی وکیلی کله کله پهدری ژبه هم پر اشعار ویلی دی دغه شعر چی دکندهار په ستاینلو کی ئی ویلی دی ګرانو لوستونکو تهوړاندی کوو

چه خوش ګفت بلبل باآن قندهار
که ای بحر رحمت ایا جویبار
باین جوش غیرت زمان از توشد
باین موج نهضت جهان از توشد
بهمان کس که این نهر رضوان کشید
سر قصر شاهان بکیوان کشید
شهنشا افغان وآریان وی است
سلیمان دوران وخاقان وی است

دغهلاندنی نظمونه دخپل آبائی ټاټوبی د ثبات دپاره ویلی دی چی پههغه کی ئی خپله مینه او علاقه د قندهار او کابل په نسبت ښودلی ده

قندهار خلد آسا قبلهٔ اعلای ماست
اشرف کل بلاد و مرکز آبای ماست
ما ز معروفیم و معروف از جهان نام و ننګ
خاکریز از ما و خاکش سرمهٔ بینای ماست
ما از آن شهریم کانجا خرقه پاك نبی (ص) است
ما از آن بحریم کانجا ګوهر والای ماست
صورت شهر صفا در صفحهٔ جان و دلم
نعرهٔ هنګ وسپاه در پردههای نای ماست
ما ز ملك زابل وغزنه رسیدیم اینطرف
چارده اندر نګین و شهر کابل جای ماست
قلعههای آهنین در هر جا کردیم طرح
افتخار این وطن از ماضی وفردای ماست
هر کجا باشیم خاك قندهار منزلګه ماست
هر کجا ګردیم کابل مسکن وماوای ماست

استاد وکیلی پهیوه رباعی کی قلم تهداسی خطاب کوی .

قلم ای آنکه بخود سخت دوچارم کردی
شاه اقلیم خط و نقش و نګارم کردی
بنمودی چو بمن معنی کابل (ظاهر)
صاحب حشمت و همصحبت یارم کردی

وکیلي پوهلزی په اوسنی پېړی کی ځان دلیك په فني کی مسلم الثبوت استاد ولی او وائی که څوك ددغه ټکی سره موافقه نلری زه چمتو یم چی دعالمانو په اوی مجلس کی عملاً امتحان ورکړم ۰

له همدغه کبله په دوو کلکسینو نو کښی دلیاقت اومو فقیت دځر گندولو لپاره سندونه نی راټول کړی دی ۰

دافغانستان ټولو ادیبانو او فاضلانو چی لیکولو ورته لیږلی دی د معظم استاد، فاضل استاد، دمشهور او قلمی خطاط، بی مثله هنرمند اوخطاط اودغسی نورو القابو سره یاد کړی دی استادوکیلی دهمایونی معظم اعلیحضرت دمبارك نوم طغرا په ډېرښو ډولو سره لیکلی دی ۰

استاد وکیلی دخپلی قبیلی په باره کی وائی فوفل دپوپل معرب او یو ډول گل دی ابدالی محمدسلیمان چی په زیرك سره ملقب دی دهغه ګل نوم پخپل لومړنی زوی باندی کیښود او اساساً باید چی پوپل وویل شی خوځنگه چی دابدالی طایفی مشرانو پخپلو معتبر اسنادو کی په عمومی توګه (فوفل) لیکلی دی نوله دغه نقطی نظره چی دافغان دتاریخ دپاچاهانو اولویو شخصیتونو د معتبر او مستندو اسنادوو یاړنه ‌شی له هغو څخه خپل مخالفت روانه بولم ۰

استادو کیلی دخپلی مورنی خوږه ژبی پښتو سره ډېره مینه اری وائی چی دخپلی خطاطی په لومړی دوره کښی حروف اودپښتو رسما لخط می دکندهار په مخصوصه طریقه او هم دخراسانی نسخ په سبك اودعثمانی په سبك بشپړ اوژوندی کړ نوموړی استاد داد عا کوی چی د خپل رسمیت دسوابق، لیکوالی اودخپلی کورنی دقرب اومنزلت داثبات لپاره دګران افغانستان دشپاړسو پاچاهانو په مهر اولاس لیك سره سندونه په لاس کی لری ۰

استاد وکیلی دهمایونی معظم اعلیحضرت دنوازش اومهربانی څخه ډېر ممنون دی او

دطلوع افغان دورځپاڼی خبریال ته ئی وویل دسږ کال دزمری په میاشت کی دریزش ناروغی رابانَدی زور شوی ؤ تر څو چی دابن سینا په روغتون کی بستری شوم دمعظم اعلیحضرت حضورته داخبر ورسیده شاهانه ذات خپل دحضور سریاور دابن سینا روغتون ته را ولیږی اوداخبره ئی دصدری کلینیك آمر ته تاکید کړ ۰

(دغه لوی خطاط اودانشمندزموږ لپاره یوه هستی ده اودهری هستی ساتونکی لوی خدای دی خوتاسی خپل انسانی کوشش وکړی ترڅوچی داهستی زموږ له لاسه ونه وزی) ❀ پای ❀

نوی خیال — ادبی نثر

## خاطره

هرڅه چی په ژوندکی خوشحالی راوړونکی دی ژرتیرېږی اوهیرېږی لیکن هغه خوږی خاطری اودلپزیره رویډوی چی زماو ستا محبت پکښی پروت دی هیڅ موله یاده نه وزی لومړی ورځ چی ستاسره مخامخ شوم او په ځیر می درته کتل تراوسه می نه هیرېږی اوزما په ذهن کښی ځلیږی ۰

هغه سا عتو نه چی زړه به می دماښام څخه ترسهاره ستادمرستی په انتظار کښی بی تابی کول هیڅ دیاده نه وزی ۰

☆☆☆☆☆

ای دآسمان نجونو!

هرماښام چی پرآسمان باندی ځلیږی او خلک په خپلو چشمکانو دآینده دپاره امید- واره کوی نو تاسی می دتیرو خاطرو شاهدی یاست کله چی تاسی ته و ګورم تیری شوی خاطری راپیادیږی ۰

ای ملایم اوزړه تازه کوونکی نسیمه !

کله چی په چلیدلو کښی دزړه خوښوونکی بوی زما دمنشاء څخه مښلوی نو ستادو ستاره یم ۰




عبدالرحمن «بلوڅ»

(۱۴) د (C.V.D) دایرة المعارف په خپل لومړی ټوک کی څرګندوی چی بلوڅی یو داندواریایی (Indo-Iranion) ژبه اوداژبه په شرقی آریایی کورنی کښی شامله ده. [۱]

(۱۵) د ۱۸۴۹ کال د امریکا د دایرة المعارف څرګندوی چی د بلوچستان عمومی ژبه بلوڅی ده چی ډېر خلک په دغه ژبه خبری کوی داژبه دوې مهمی لهجی لری او د (Iranion) (اریایی) ژبو په ډله پوری اړه لری په دې ژبه کی دفارسی ژبی اثر لیدل کیږی چی ددی علت هم د همدغو خلکو هجرت دی. [۲]

(۱۶) دغه ډول په انګریزی ډکشنری کښی د بلوڅی کلمه داسی معنی شوې ده چی داژبه د جنوبی اریایی په (Iranic-Class) پوری مربوطه ده. [۳]

(۱۷) میجر جورج مورګنستېر هم بلوڅی یوه آریایی ژبه بولی چی په شرقی کورنۍ کی شامله ده [۴] د پورتنیو تحقیقاتو له مخی موږ ویلای شو چی بلوڅی یوه اریایی ژبه ده اود اریایی ژبو په شرقی کورنۍ کی شامله ده او ددې ژبی اصلی ریښه هم د پښتو ژبی اصلی منبع ته رسیږی اودواړی ژبی سره خویندی اود یوې مور لوڼی دی.

## دبلوڅی کلمی معنی او ریښه:

نو موږ ی لیکوال تر دغه عنوان لاندی لومړی د برهان قاطع او نورو قاموسونو په حواله لیکی چی د چرګ تاج ته وایی او ډیر ضعیف استدلال هم ورته راوړی او هغه دا چی د وی خپله لنګوټه د چرګ د تاج په ډول ږدی او دغه صفت په پښتنو او پنجابیانو کی هم شته. د لته نوموړی لیکوال له تصور څخه کار اخستی دی او حقیقت بل ډول دی

داولس مجله لیکی: بلوڅی یا بلوڅ د بلوچستان د خلکو نوم دی دا کلمه په پښتو کی بلوڅ دی د پښتو د تلفظ په لحاظ او دا چی په عربی کی د (چ) آواز نشته په عربی کی بلوص په اوستا کی بلوش په عبرانی کی بلوش په اشوری کی بروشو په آرامی پهلوی کی بروهوا او په بلوڅی ژبه کی بلوچ ویل کیږی. ددې کلمی د تلفظ اختلاف د مختلفو ژبو او لهجو د اختلاف په سبب پیدا شوی دی. په عربی کی د (چ) آواز نشته د دې په مقابل په عبرانی کی (س، ص، ث) آوازونه نشته مثلاً د عربی (عاصی) په عبرانی (آهی) ویله کیږی او د عربی (حېث، ثمود، بعث) په عبرانی کی (حیت، تمود، او بعت) تلفظ کیږی او همدغه د بلوڅ لفظ په بابلی لهجه کی بلوشو ویله کیږی [۵]

مخکی له دې نه چی د بلوڅی کلمی معنی معلومه کړو غواړم چی د براهوایی د کلمی په باره کی هم یو څو خبری وکړم او لومړی

---

[۱] The Co Iuui bía Diking Desk Encyclopebia pp.qq A-K

[۲] ۷۰ 3 ,1829 E-A

[۳] Funkand wag nalls nêw Stàndard Dictionâry of The English Iànguage-N-V-1961

[۴] د میجر جورج مورګنستېر ر پوټ ۱۹۲۴

[۵] اولس کوڼه بلوچستان په پښتو ژبه) ص ۲۰-۲۲ س ۱۹۶۳

داثابته کړم چې دا کلمه هم په اصل کې بلوڅ وه.
دپورتني وضاحت نوله مخې هر کله چې د-ل او،س،ش،چ،ص تلفظ يو اوهم مخرج آواز نه دی نوځکه يو په بل بدليږي.[۱]

اوس نوکه موږ د بلوڅي کلمه د آرامي پهلوي ژبې دلهجې او تلفظ مطابق وليکو چې په هغې کې ل=ر،او،چ،س=ه تلفظ کيږي نو په

دې شيان په همدغه لفظ د بلوڅي بروهي شوي وي نو په دې ترتيب موږ دې نتيجې ته رسيږو چې بلوڅ او براهويي دواړه يو قام او په نومو نو کښې فرق راغلی دی او دلهجې اختلاف هم له دې باعثه دی چې په براهويي ژبه باندې

د پردوږ بواثر پريوتی دی او په دې اعتبار موږ دا نتيجه هم اخستی شو چې ددی دواړو ژبو بلوڅي او براهويي او يو نکي خلك د تاريخ

په پخوانی زمانه کښې په دوو بيلو بيلو تهذيبي او مدنی سيدو کې ځه زمانه ځا زله جلا او سيدل شايد د همدې اعتبار اتوله مخې ځيني کسان چې ژور فکر نه لري دوی دوه جلاقومونه بولي مير ګل خان نصير د بلوچستان

په تاريخ کې ليکي :

د بلوڅو هغه قبيله چې په برز کوه کې د پښتنو (او غان) سره يوځای اوسيدله او وروسته تر هغو تښتوچې ددوی اودانو ښيروان ترمنځ وشوې دوی بيرته خپل اصلي وطن بلوچستان ته راغلل او په کلات کښې ئې يو محلي حکومت جوړ کړ په دغه وخت کې دراويد يانو دوې ته برز کوهي ويل چې وروسته بيا بروهويي او اوس براهويي يعني (ويه ا) بدل شوی دی او په سندی ژبه کې اوس هم دا کلمه بروهي ويل کيږي [۲] د اسلام دايرة المعارف ليکي چې بلوڅان په دووګر و پونو باندې ويشل کيږي (براهو او بلوچ)

لنډه دا چې دوی دواړه يو قام او د يوه پلار زامن دی او کوم جزئي فرق او توپير چې د دوی په ژبو کې ليدل کيږي د دې خبرې برهان نه شي کيدای چې دوی مختلف نژادونه دي.
اوس نو بيرته خپل اصلي مقصد ته ځو :

ښاغلي جعفري دانګريزي منصبدارانو په وينا باندې اتکاء کوی او وايي چې بلو چ دهندراجپوتانو يوه ښاخه ده.

راجپوتان په هند کې يو زړور او بهادر قام دی چې د دوی فداکاری په هره دوره کښې د هند د تاريخ افتخار ګڼل کيږي نو که دا حکم د بهادری او ميړانی په لحاظ وی البته بلوڅان د هغوی سره په دې صفت کې شريك دی مګر د قوميت په لحاظ کوم ارتباط ورسره نه لري.

دی وايي چې بلوڅ کلمه اصلاً مليچه ده دا نوځکه کيدای شی چې (م) فوراً په (ب) بدل شي! يا دا چې بدرو چ ورته وائي نو کمان نه کوم چې (و په ل او د په و بدل شي).

بل ځای دی وائی چې بيلوس د دوی د خدای نوم ؤ اودغه نوم ئې په ځان باندې اينبی دی اودا کلمه اصلاً يونانی ده.

بيلوس د بلوڅانو خدای نه ؤ بلکه د دوی ستر نيکه ؤ اودا کلمه څرنګه چې نو موړی ليکوال ګومان کړی يونانی نه ده بلکه آريايي کلمه ده. ممکن چې په يونانی ژبه کښې هم دغسې يوه کلمه موجوده وی ليکن په هره ژبه کښې چې يوه داسې کلمه موجوده وی هغه د بلوڅانو خدای يا ستر نيکه نه دی په آخر کښې ښاغلي جعفري اصلي حقيقت ته نژدې کيږی او وائي چې د بلوڅ کلمه له دوو اجزاؤ څخه مرکبه ده (بل او اوچ) او بل دفارسی (پهل) دی مګر زه وايم او خبره په همدې ځای ختموم چې (بل) په براهويي او سانسکريت کې دلوی معنی

[۱] اولس کوټه بلوچستان (په پښتو ژبه) ص۲۰- ۲۲س۱۹۶۳
[۲] د اسلام دايرة المعارف لومړی ټوك ص۱۹۶۰ص۱۰۰۵

ورکوی او د بل کلمه تر اوسه پوری په براهوی ژبه کښی استعمالیږی او دالاندی شکلونه لري (بل بلا، بلون، بلو) مثلاً قوم نابلا، (دقام مشر) بلابندغ (لوی سړی) بلوکړاس (لوی څیز) او په بلوڅی کښی بلی او بلوك ، زاته وائی چی په دوی کښی هم دلویوالی معنی پرته ده او داوچ اصلی معنی بهادر ددی نو د بلوچ د کلمی معنی لوی بهادر او غیرتی دی

که چیری د دغه نوم صفت دده په موسوم کی موجود نه وی نو ښاغلی لیکوال دا عتراض حق لري لنډه دا چی د بلوڅ اصلی معنی لوی بهادر دی او دا معنی هرچاته ښکاره ده نو که نوموړی لیکوال او دده د مکتب پیروان نوری معناګانی ورته جوړوی هغه به ددوی خپل ځانی نظر به وی بل دا چی په ځینو کتابونو کی د بلوچ سره د قفص یا کوفچ کلمه مترادفه راغلی او دزیاتو کسانو دا خیال دی چی دوی یو قام دی حال دا چی دوی سره بیل دی لکه چی حدود العالم لیکی: «قفص ها از بلوچها می ترسیدند .... و به این حساب باید بلوچها از ضعف همسایه های خود استفاده کرده باشند» دغه راز نوموړی کتاب زیاتوی چی د کوفچ معنی په پارسو کی (کوه پیما) ده او په عربی رسم الخط کښی کوفچ په قفص لیکل شوی دی او دقفص قام د بلوڅانو له لاسه له خورا سختی ماتی سره مخامخ شوی دی (۱) دغه راز هلته چی ښاغلی لیکوال د (تاج خروس) معنی د بلوڅ و کلمی ته منسوبوی په غیر مستقیم ډول دغه معنی د پښتون کلمی دپاره هم جوړوی .

داخبره حقیقتاً د خندا وړ ده دې کی شك نشته چی د پښتون او بلوڅ قامونه په بهادری او میړانه کی د دنیا د نورو قامونو په نزد د لوی افتخار او حیثیت خاوندان دی او خپله میړانه ئی تر ټولو دنیا ثابته کړی ده د تاریخ په هره دوره کی په ګډه او په عملی توګه ورښودلی ده ځکه چی ددوی ددودونو عنعناتو او حتی ژبو ترمنځ کوم خاص او بنیادی فرق نشته او دواړی ژبی سره خویندی دی نو ځکه مؤرخین هم ددې دواړو قامونو په هکله یو راز فیصلې کوی.

مګر که چیری نوموړی لیکوال او دده د مکتب پیروان د پښتون قام په باره کی معلومات نلري او د پکت، پکهت او پښت نومونه ورته ناآشنا ښکاری نو لطفاً دی د اریانا د هجرت ته وګوري تر څو چی د شك او تردید له دایرې نه ووځی .

اوس نو زه دلته د بلوڅانو او پښتنو د تاریخی ګډو کارنامو څخه یو څه بیانول غواړم:

ښاغلی بینوا د هوتکو په تاریخ کښی لیکی هغه وخت چی د ګرګین د ظلم او جفا توری وریځی د افغانستان د ځمکی په یوه برخه کښی خپری شوې او د ځوروځو د پاره ئی د ظلم او ستم باران ورېده وا اوروال او په دې پوه نه ؤ چی د دې خاوری د قومونو د غیرت په مقابل کښی د مقاومت توان او واك نلری همدغه دواړه قامونه (پښتون او بلوڅ) وه چی د جنګیالی حاجی میرویس خان هوتك په مشری یې د ګرګین د ظلم او تیری مانۍ داسی ونړوله ګړه چی د ګرګین او دهغه د پیروانو په خیال کی نه ګرځیده او دغه ټکل تر اوسه پوری په تاریخ کښی د ګرګین تر عنوان لاندی موجود دی [۲] قاضی عطاالله خان د پښتنو په تاریخ کښی داسی لیکی :

---

[۱] حدودالعالم حواشی او تعلیقات مینورسکی کابل ۱۳۴۲

[۲] د هوتکو تاریخ مؤلف عبدالرؤف بینوا د عقرب ۱۴ - ۱۳۳۵

په کلات باندې دانګریزانو د حملې په وخت کې ناصرخان د محراب خان زوی وتښتېد او د خپل پلار د حکومت د واپس اخیستلو دپاره د یوې مناسبې موقع په تلاش کې شو. د یوې خوا د بلوڅو قام د شاه نوازخان په خانۍ باندې بلکل رضا نه ؤ بل دا چې هغه د فرنګیانو په لاس

کښې یو بې طاقته او بې اختیاره سړی ؤ او په هم دې سبب هغه د بلوڅو قوم قدر او عزت نه شو حاصلولی چنانچه هر کله چې به هغوی ته موقع په لاس ورتله نو په فرنګیانو او د هغوی په سړو باندې به یې حملې کولې تردې حده پورې چې یو ځل بلوڅو لفټننټ والپول کلارک

یو انګریزی افسر هغه د ایښانو له یوې قافلې سره بالکل تباه او لوټ کړو پس له دې هغوی او کاکړو کویټه محاصره کړه او ناصرخان د خپل پلار د حکومت د بېرته اخستلو د پاره میدان ته راووت.

ټول قبایل (پښتون او بلوڅ) د هغه تر جنډې لاندې راټول شول ځکه چې د هغې علاقې د ټولو پښتنو دا یقین ؤ چې د محراب خان بې-ګناه فرنګیانو وژلی دی او د هغه پر ځای ئې خپل یو غلام زموږ پر سر باندې درولی دی

چې د دوی د استعماری ګټو د پاره هر ډول ظلمونه پر موږ کوی ناصرخان په لږه موده کې د خپل قام مشری په لاس واخیسته او لوی طاقت یې پیدا کړ.

او پر کلات باندې یې حمله وکړه که څه هم لفټننټ ټو پرژر له خپل حکومت نه کومکونه وغوښتل مګر د بلوڅو قبیلې پر سند حمله کړې وه۰۰۰۰۰[۱]

د اولس مجله د ډاکټر میر راقب (تواریخ بلوڅ) په حواله لیکي چې د اتلسمې پېړۍ په منځنۍ دوره کې چې د مسلمانانو قدرت په هندوستان کې مخ پر ضعف روان ؤ مرهټو د ډهلي د تخت د نیولو هڅه کوله. دا خبر احمدشاه ابدالي ته ورسید چې مرهټه غواړي د هندوستان پایتخت له مسلمانانو نه و نیسي د دې ګران کار لپاره احمدشاه ابــــدالي

میر نصیرخان ته رجوع وکړه او د بلوڅو یو ننګیالی لښکر د احمدشاه سره روان شو او د پانی پت په میدان کې یې د مرهټو ټولې قواوې له منځه یووړې. په ۱۷۷۸ کې د علي مردان خان د مقابلې دپاره د احمدشاه سره د بلوڅو ۲۹ زره جنګیالي

میړونه ملګري شول په نتیجه کې فتحه د احمدشاه په نصیب شوه تر فتحې وروسته احمدشاه بابا د نصیرخان د مور پوښتنې ته ورغی ځکه چې دا میرمنه په خپله د ابدالي کومک ته ورغلې وه او احمدشاه یې خپل زوی باله. احمدشاه د کویټې علاقه د پوهنې په ډول بی بی مریمې

ته ورکړه چې تر ننه پورې شالکوټ نومېږي[۲]

ښاغلی ملک الله بخش خان بلوچ بی، اې په خپل کتاب کې لیکي:

هغه وخت چې د مسلمانانو پاچاهانو پر هندوستان باندې حملې کولې د بلوڅانو کارنامې هر چا ته معلومې دي او کوم وخت چې همایون د ډهلي د تخت: بیا لاس ته راوستلو لپاره هغې خوا ته متوجه شو نو په لومړي ځل د بلوڅو

د توري شرنګ د ډهلي د کلا په دروازه کې واوریده شو د غه راز د محمود د غزنوي د لښکر ځلورمه برخه او د احمدشاه ابدالي د لښکر یوه

برخه بلوچ او نوره پښتانه وه نوموړی لیکوال زیاتوي چې د مرهټو په جنګ کې لس زره بلوڅان د دین د خدمت په لار کې شهیدان شول

---

[۱] د پښتنو تاریخ دوهم ټوک. قاضی عطاالله خان جولای ۱۹۵۹ ص ۱۰۸-۱۰۹

[۲] اولس کویټه بلوچان

مګر مرهټو ته یې یو نه هیریدونکې شکست ورکړ. د افغانستان حکومت دغې ورورۍ ته مناسبا نو په وجه خان اعظم میر نصیر خان ته دوفادار ورور لقب ورکړ [۱]

سربیره پردې چې د دواړو قامونو د مشترک ثقافت خاوندان دي یو بل مهم خصوصیت چې په دې دواړو قامونو کې مشترک لیدل کیږي هغه قبایلي روش دی چې هره قبیله د خپل سترې نیکه په نامه یادیږي لکه: احمدزی، اڅکزی اسماعیل زی، خروټی، منګل، بارکزی محمدزی ګورګټ او داسې نور ی

حتی ځینې قبایل په پښتو کې شته چې هغه عیناً په هماغه نامه په بلوڅانو کې لیدل کیږي لکه خروټ، احمدزی، اسماعیل زی منګل ګورګېج او نور چې د غه خصوصیت په داسې حال کې چې په نورو قامونو کې ابر لیدل کیږي ددې دواړو قامونو اړیکې لا ټینګوي

په آخر کښې له هغو خصوصیتونو څخه چې ددې دواړو قامونو د ژبو تر منځ مشترک دي یو څو مثاله بیانول غواړم:

۱ـ لکه څه ډول چې په پښتو کې د (ټ، ډ، ړ) آوازونه موجود دي او په پاړسو کې دا آوازونه نه شته همدا ډول دا آوازونه په بلوڅي ژبه کې هم استعمالیږي لکه: ډول، ټپ، و ړ ی او نور .

۲ ـ په دواړو ژبو کې صفت تر موصوف د مخه راځي .

۳ ـ په دواړو ژبو کې لومړی مضاف الیه او وروسته مضاف راځي .

۴ ـ (ین) د نسبتي لاحقې په ډول په دواړو ژبو کې استعمالیږي .

۵ ـ (یې) په دواړو ژبو کې ناخپلواک اضافي ضمیر دی څنګه یې ګاری ورور یې براس یې

۶ ـ په دواړو ژبو کې داسې کلمې ډیرې دي چې په سا کن حرف شروع کیږي .

«د بلوڅي او پښتو او د بلوڅي او براهوي او پښتو د ارتباط په باره کې لطف آد کابل مجلې ۱۳۴۴ کال د زمري او تلې ګڼو ته مراجعه وکړئ » نباغلي جعفري د خپلې مقالې په سر کې وائي چې د ایران په خاوري د پاکستان په باختري د افغانستان په جنوب باختري او د شوروي اتحاد د ترکمنستان په ځینو برخو کښې یو ډول خلک هستو ګنه لري چې د وی ځانته بلوڅ او خپلې ژبې ته بلوڅي وایي او یو ډول لی خپل اوسنی هیواد بلوچستان بولي ،مګر بیا هم داسې کسان دي چې په مختلفو لهجو (خراساني، پاړسو، کرماني پاړسو، کردي، سندي، ملتاني، پنجابي، پښتو او عربي ) خبرې کوي او له پاکستان نه نیولې تر عربستان پورې خپاره دي او سره له دې چې د پردو د امیزش په اثر د غو ټولو ته موږ بلوڅ نه شوو ویلای بیا هم دوی ځانو ته د بلوڅ خطاب کوي» .

۱ـ اوس نو ښاغلي لیکوال ته ښایي چې په دې پوه شي چې دوی حقیقتاً بلوڅان دي او دا نه چې یوازې دوی ځانته بلوڅ وایي بلکه ټول نړی وال دوی په دغه نامه پیژني او د دوی تاریخي کارنامې نه یوازې د ښاغلي لیکوال په تاریخ کښې بلکه د اکثرو هیوادونو په تاریخونو کې د افتخار په قلم لیکلې شوې دي .

۲ ـ د ارشتیا ده چې د دوی هیواد بلوچستان (محکوم جنوبي پښتونستان) او د دوی د همدغه وطن او خاورې زامن دي چې د دې خاورې په سر د دوی د غوا ړانو وینې تویې شوې او تو ییږي او د اورنګ او فرنګ په مقابل کې دریدلي دي، او که چیرې تاسو ته د بلوچستان اصلي سرحد معلوم نه وي نو زه د یوه بلوڅ په صفت د تاریخي کتابونو په اسناد د رته وایم چې (له کرمان څخه نیولې تر سند پورې د دوی سیمه او پخواني خاوره ده [۱] .

۳ـ ښاغلي جعفري به په دې پوهیږي چې ژبه هیڅکله په نژاد باندې تأثیر نه کوي او دا چې

۱ ـ ـ بلوچ قوم کی تاریخ کی چند بریشان دفتری اوراق . ملک الله بخش بلوڅ بي ، اې ص ـ ۲ ـ ۵

د محیطي تأثیر و نو له امله په مختلفو محیطو نو کې د بلوڅانو یوه محدوده برخه په بېلو بېلو ژبو خبرې کوي. ستاسو د دې تاریخي څېړنې دلیل نشي کېدای چې ګویا دوی مختلف نژادونه دي بلوڅ په هر ځای کې چې وي او په هره ژبه چې خبرې یې هم بلوڅ دي نه عرب کېدای شي نه ترک او نه بل څه.

ښاغلی جعفري د خپلې مقالې په یوه کرښه کې وایي چې بلوڅان د حضرت حمزه یعنې د حضرت پېغمبر د کاکا اولاده ګڼي او ددې خبرې د اثبات د پاره یو نیم بلوڅي بیت هم راوړي مګر لکه څنګه چې وروسته ښاغلي لیکوال پخپله هم اعتراف کړی، کوم حمزه چې په بلوڅي اشعارو او یا نکلو نو کې راغلی دی له هغه نه مراد حضرت حمزه نه دی حمزه د بلوڅو د یو تکړه ستر نیکه او پښتانه او بلوڅان تل په خپلو مېړنو نیکو نو ویاړي او د هغو نومونه په خپلو اشعارو کې راوړي.

بل دا چې نوموړی ادیب براهویي خلکو ته بومي او ددوی ژبه د سترلیاد بومیانو د ژبې سره یو شان ګڼي او یا دا چې وایي پښتانه ځانته بني اسرائیل وایي نو داد نوموړي لیکوال په معلوماتو پورې اړه لري مګر نه براهویان د استرلیا بومیان او نه پښتانه د اسرائیل اولاده ده بلکه براهویان سوچه بلوڅان او پښتانه د پکټ او پښت اولاده ده.

بالاخره وروسته له ډېرې مجاهدې ښاغلی جعفري د خپل زړه راز ښکاره کوي او وایي چې بلوڅان اصلاً ایراني دي. مګر که چېرې دده مراد دا ایراني نه اریایي وي زه هم دده د خبرو تائید کوم او که چېرې بله معنی ځني مراد وي هغه دده په وطني احساس پورې اړه لري

دی د ډاکتر لاتام د لېکنو په استناد وایي چې کرد او بلوڅ یو قام دی حقیقت دی چې کرد د بلوڅو یوه ښاخه ده او د تاریخ په ډېرو زمانو کې اوغان، کرد، او بلوڅ یو ځای سره اوسېدل او د ژوند په کار کې سره متفق وه لکه چې فردوسي هم په شاهنامه کې ددې ځای برز کوه بولي او په هغه کې د بلوڅانو مناسبات د ایران د هغه وخت له شهنشاه سره ښیي.

چنین ګفت دهقان دانش پژوه — مر این داستان را ز پیش ګروه
که نزدیک زابل دوسه روزه راه — یکی کوه بود سر کشیده به ماه
به یک سوی او دشت خرګاه بود — دګر دشت زی هندوان راه بود
نشسته دران دشت بسیار کوچ — ز اوغان و لاچین و کرد بلوچ[۲]

بل ځای وایي:

همی رفت و آګاهی آمد به شاه — که ګشت از بلوچی جهانی تباه
بکار بلوچ ارجمند ارد شیر — بکوشید با کار دانان پیر
نبود سودمندی به افسون ورنګ — نه از بند و رنج و نه پیکار و جنګ
ز ګفتار دهقان بر آشفت شاه — بسوی بلوچ اندر آمد براه

او په آخر کې داسې وایي:

از ایشان فراوان و اندک نه ماند — زن و مرد جنګي و کودک نه ماند
سراسر به شمشیر بګذاشتند — ستم کردن کوچ بر داشتند
بشد ایمن از رنج ایشان جهان — بلوچی نه ماند آشکار و نهان[۱]

اوس دې نو ښاغلي لیکوال پخپله قضاوت وکړي چې که چېرې بلوڅ واقعاً د دوی په اصطلاح (مالي ایران) وي نو د دوی د ارتباط او ورورولۍ تاریخ ولې له دومره خونړیو او بدو خاطرو نه ډک دی.

کابل

[۱] شاهنامه-فردوس [۲] شاهنامه فردوسي (ج)۴(ص)۳۸۴

لیکوونکی رهبر فاروقی

د الماسو اصلیت او ماهیت



مترجم عبدالقدوس [ن]

# د کوه نور الماس

مهار اجا دی پخپله راسی زه تاسی نه پېژنم .

رنجیت چې دا او رېد له بېله ډېر الوېدله څخه فورآ مخ د شاه درې پر خوار ارهې شو - شاه شجاع ورته سره مخامخ شو دده معلوميت لاس ورد مخه کړ مګر شاه شجاع خورا دماتې خوار و غمبړ ور سره وکړي او پر فرش باندې مخامخ سره کښېنستل له دوا ړه پټه خوله ناست وه شاه شجاع د فکر په سیند کښې داسې لاهو ؤ چې په هیڅ نه پوهېدې او دراجا هغه مصایب چې پر ده او دده پر ماندینې باندې ئې راوستلي وه ترسترګو دورې هېسته کېده له ډېره زوره څخه به لکه دم کړی د ینګ پر له غوټېدې او له ځانه سره به ئې د اویل هې افسوس نن هغه ورځ ده چې ترځان را باندې ګران کوه نور زما له لاسه وزی دده پدې اندېښنو کښې د کوه نور په ور کړه کښې لږ څه ځنډ پېښ شو دراجا دصبر کاسه لبریزه شوه نو ئې و خپل یوه خاص نوکر ته اشاره وکړه او په غوږ کې یې ورته وویله چې شاه شجاع ته پته د کوه نور دمدعا یادوه او که هغه راغی او شاه ئې په مطلب پوه کړ د بېچاره شاه ترسترګو اوښکې راغلې او په زیولې آواز سره ئې خپل نوکر ته وویله نوکر هم ولاړ ی کوه نور ئې په ټکر کښې پېچلی راوی او رنجیت سنګ ته ئې تسلیم کړ .

## پنځم فصل

در نجیت سنګ تر قبضې د مخه د کوه نور تول

ځینو مؤرخینو لیکلی دی چې د کوه نور وزن در نجیت سنګ تر قبضې د مخه ۳۸ قیراطه کم شوی ؤ ګومان کېږی چې شاه زمان یا شاه شجاع به د ارامی له مخې یو څه ټوټې ځنې پرې کړی او خرڅې کړی ئې وی دده کن تاریخ لیکوونکی لیکلی دی کله چې دا الماس رنجیت ته په لاس ورغلی وزن ئې ۴۲ ماشې ؤ .

د کوه نور قیمت

رنجیت سنګ یو وخت له شاه شجاع څخه د پورتني الماس د قیمت پوښتنه وکړه شاه وخندل او وی ویل قیمت ئې (بخت دی بخت) کله چې رنجیت د شاه شجاع ماندینې ته لیکه لیکه نو په هغه کې ئې دده پې الماس د قیمت معلومات هم ځنې وغوښتې .

بېګمې ئې په جواب کښې داسې ولیکله که یو سړی پنځه ډبرې و خلې څلور ئې څلورو خواؤ ته او یوه ئې د آسمان وخوا ته په بشپړ قوت سره وغورځوی او د اخلاوی ئې په سرو زرو او جواهراتو سره ډکی کړی لا دا قیمت ور لره لږ دی .

د هغې زمانې جواهرات پېژندونکو ئې د قیمت اندازه لس لکه پونډه ټاکلې ده د آئینه جوهری مؤلف لیکلی دی :- که یو سړی د شاه شجاع او رنجیت سنګ د کوه نور د غوښتلو ملاقاتي منظره لیدلی وای نو هغه وخت به پوهېدلی وای چې شاه پدې موقع کښې له څومره حوصلې څخه کار واخیستی چې تو له حاضرینو هک پک ورته ولاړه .

در نجت سنګ ظالم د ظلمو یوه شمه

د کوه نور له ور کړې څخه د وې ورځې وروسته و شاه شجاع ته له ماندینې سره د ملاقات کولو اجازه ور کړه تقریباً یوه هفته ئې لا نه وه وړ سره تېره کړې چې د کشمیر د حاکم سردار محمد عظیم خان سره ئې د خط و کتابت په تهمت سره چې حقیقت ئې هم نه درلودی بېرته د بندی خانې شومه کړی .

## د رنجیت سنګ په قبضه کښې د کوه نور تول

هغه وخت چې د وزیر فتح خان او رنجیت ظالم په ما بین کښې په ۱۸۱۶ عیسوي سنه کښې څه ګړ بړ پیښ شو او رنجیت د مقابلې لپاره پېښور ته تللی نو شاه شجاع خوار ئې سره لدې چې د خناق په سخت مرض اخته ؤ له ځانه سره بوتی تر رهتاس پورې لا نه ؤ رسید لی چې د وزیر فتح خان د پېښور د خوشي کولو خبر ئې واورېد نو لدې سببه څخه رنجیت بیر ته لاهور ته راغلی او شاه شجاع ئې په را ولپنډي کښې د رام سنګ نومي تر نظارت لاندې پرېښووی هلته د غه رام سنګ نومي سر کوزی هغه خواري پر راوستې چې چا په ستر ګو هم نه وي لیدلی کهرك سنګ نومي یو بل ظالم به ئې هره ورځ مالونه تلاښي کوله او پدې ترځ کښې چې به ئې هر شی د بود پلاس ورغلی غلا کا وه به ئې د دې ظلم اصلي وجهه د رنجیت اشاره وه غوښته ئې چې پدې ډول سره له غیر مستقیمې لارې څخه د معلیه خاندان مشهوره یاقوت ځنې لاس ته کې مګر افسوس چې څه ئې لاس ته وره نغله نو ئې لاهور ته د پیاده راوستلو حکم صادر کی ·

هغه ازونې شاه ئې په خورا بدحال سره لاهور ته راوستې او په داسې زندان کښې ئې واچاوه چې پر سر د مځکې دوږخ ؤ او علاوه پر هغه ئې یو داسې حیوان طبعته سړی پر سر پرست کی چې د انسانیت یو اثر هم پکښې نه ؤ شاه ته به ئې هم سوال جواب په ښکنځلو سره ورکاوه ·

دې وضعیت خورا تنګ کړ او هر وخت به ئې د ځان د وژلو اراده کوله مګر چې بیا به ئې له ځانه سره فکر و کی چې مړتت به له دنیا تیر شم نو بیر ته به له عزمه څخه راو ګرځیدې

چنانچه په خپلو وقایعو کښې ئې اشاره هم ورته کړیده ·

دران حین از فرط ملالت جامه راد و بر چاك میکردم و پنجه از آزردګی بر دل غمناك می زدم چرا که از ګردش فلك کج رفتار عرصه روزګار بر من تنګ و پای افتادم از هر سو لنګ شدو بجز فرار چاره نه جستم آن را پسند یدم اما بابستی و ګرفتاری عیالم پا بسته و ګرفتار زیرا که ترك ایشان منافی شیوهٔ غیرت و همت

بوده خصوص دردست چنین معاندسالوس احسان فراموش ( مراد رنجیت سنګ ) پس لاعلاج اول در تهیه کشیدن (انتظام رهائی ) عیال شدم وچنان کردم که در خفیه بیرون شهر ګاړی ها را مقرر آن نمودم و بذریعه زنان غربای هنود که در حرم تردد داشتند بعضی ازمعتمدان را که بجهت آن مقرر بود امر شد که چهار مرتبه اهل حرم را ده ده نفر تغیر

لباس نموده مثل زنان هنود ساخته ګاهی به بهانه ئی سیر سحرا و دمی چند بعذر شنا ئی دریا بقراری که معمول آن قوم بود برآورند و در ګاړی ها که منتظر آن قابو بود ند نشانیده بصوب لودهیانه که آن بجهت دوستی با دولت انګلیس جای خود می دانستم امر بردن فرمودیم ·

## د رنجیت سنګ ظالم د ظلمو یوه بله شمه

شاه شجاع چې خپل ټول عیال د لباس د بدلون په ډول سره د رنجیت ظالم له حرم سرایه څخه ویستل پرېنځم واری باندې دا پټ راز معلوم شو او چو پړیانود شاه شجاع و ډوکی زوی رنجیت ته د ړاندې کی هغه پسله قهره

«نوربیا»

دفی عالم الرؤیا له عربی کتابه څخه

لیکوونکی جبران خلیل جبران

مترجم (نجیب)

# دخوب په عالم کښې

په یوه اوږده شپه کښې چې دمځکې پرمخ باندې دظلمت تور څادر غوړیدلی او ټول کائنات درانه خوب وړی وه زه دخوب له بستره څخه مخ دسمندر پرلور وپاڅیدم په لار کښې می له ځانه سره وویل (سمندر خو نه بیدیږی نو ځکه ئې د او بیښتوب وویښ روح ته تعزیت دی) په همدې چرت کښې روان وم ترڅو چې د سمندر وغاړې ته ورسېدم هلته می روڼې او به ولیدلې چې سپین ځګ ئې دپاغوندې په څیر سره پرمخ باندې خپورو په شور کی بهد غرو له لوړی سطح څخه را بهیدلې او په نژدو نواحیو کښې به داسې خپرېدلې چې تا به ویل دښکلې پی مخې پیغلې پر مخ خړ سالو را ځوړند یږی دخپو دلښکرو جوش وخروش او دکائیناتو و بخښل سووقواؤ ته حیرت یووړم او په دې فکر کښې شوم چې یاالهې دا څه سړدی چې ګاهې دا قواوی له باده سره په تیزی کښې ملګری وی کله بیا له اورغور ځونکی غره سره دسرې لمبې په څیر سر دښکاره شي یووخت دګل په پاڼو کښې خندا او بل وخت په سترګو کښې ژړاشي.

ددې اندیښنو په حین کښې می ناڅاپه له اړخ سره نږدې وډروا شباحو ته پام شو چې پر یوه غټه کرکنډه باندې ناست وه نه سوه را معلومه چې دځمکې نازکې پردې ددوی مرموز بدنو نه مستور کړه او که ئې زه وه کړی خو په هر حال مادوی وخواته خپل قدمونه چابک کړه مګر یودم بې ارادې ودریدم او په یوه سحری قوه سره می عزم جامد او دروح خیال می بدلون پیدا کړ.

له هغو اشباحو څخه یو ودریدی او په مرموز آواز سره ئې دبحر له اعماقو څخه داسې وویل (ژوند بیله محبته څخه دهغې ونې په څیر سره دی چې میوه او ګلان نه لری او حب بیا بیله جماله څخه د بې عطره ګل او بې تخمه میوې حیثیت لری ژوند، حب، او جمال هغه اقانیم ثلاثه دی چې په یوه واحد مستقل ذات کښې نه تغیر قبلوی او نه د انفصال لرونکی کیږی تردې څو لنډو ویناؤ وروسته هغه سمدستی کښېنستی او بل یو ولاړ شو او په داسې مرموز ږول سره ئې چې تا به ویل نری، نری او به بهیږی خپل مطلب په دې ږول سره اداکړ (ژوند بیله تمرد څخه دهغو فصلو حیثیت لری چې پسرلی پکښې نه وی تمرد بیا بیله حقه څخه دوچې صحرا پسرلی دی چې لطافت او فیاضی ئې هیڅ فایده نه ور ته کوی (ژوند، حیات، تمرد او حق دری اقانیمه بولم چې په یوه واحد ذات کښې نه تغیر قبلوی او نه انفصال).

دوچې شپله ویناختمه کړه دریم ولاړ شو او دتالندې دغړومبې په څیر سره ئې داسې وویل: حیات بیله آزادی څخه بې روحه جسم دی او حریت بیا بیله فکره څخه دمشوش روح حیثیت لری (ژوند یا حیات، حریت، او فکر پخپل واحد ذات کښې دری اقانیمه بولم چې نه مضمحل کیږی او نه زوال پیدا کوی بلکه ابدی دی.

بیا نو دری سره اشباح په یوه سلاو دریدل او په ګډه سره ئې داوویل حب، تمرد، او حریت دخدای مظاهر دی.

دوی چې دا وویل زما سترګی سره ورغلې چې خلاصی می کړی غور له بحر څخه می بل شی ونه لیدی چې او به ئې سر له ګار و څخه و اهه او په شرشر بهیدلې ژروهغې لوړی ږبری ته چې هغه دری اشباح پر ناست وه ور نږدې شوم څوک می ونه لیده بلکه دبخار یولوی ستون می ترسترګو شو چې سرئې و آسمان ته جګ شوی و.

ادبي نثر

# نور مې مه زهيروه

شپې او ورځې په انتظار کښې را باندې تېرېږي.

له ډېره انتظار مې سترګې وچې شوې.

ستا د ملالو سترګو، ګلابي رخسار، اناري شونډانو او نريو وريځو تصور هر ګړی نوی نوی رنګ راته ښيي.

ستا د زړه وړونکي شيرين آواز په ارولو پسې مې غوږونه ستړي شوه.

ستا هغه د ناز ننګ چې را په ياد شي ډېر مې زوکلوي، او د يوه تازه درد وخواته مې رهنمائي کوي.

ستا د غوښتلو ډېر فرياد او التجا مې خوله ستړې کړې او اضافه ملګرې نه راسره کوي.

ستا د موندلو په تلاش پسې مې د بدن ټوله غړي ستړي او ستومانه دي.

ستا د بېلتانه غرنيوونکي غمونه اضافه زما په داوړو کې ټوټه (ذره) کښې د استوګې طاقت نه لري.

نو په ډېره عاجزۍ درته وايم: «دا ستمونه بس کړه».

نور مې مه زهيروه.

که دې دا ستمونه راځخه ونه ګرځول زه به هره ورځ د يوه جهان غمونو سره مخامخ کېږم؛ او ته به په «ستمګره» سره مشهوره شې.

ددې داغدارو زړو ځخه وېرېږه او خپل

ښيرين زړه دې نرم کړه؛ زه وېرېږم چې دا سنګدلي به دې دښايست ودانۍ ته زلزله شي او در وبه ئې نړوي.

ګراني محبوبې! پدې بې ډډامه ښايست مه خطا وزه؛ راشه راسره پخلا شه، او د محبت لاس دې په لاس کښې راکه.

پدې خوښي مه کوه، چې ستا دلاسه يومين پرهار زړه، ستا د لوبو آله وګرزي.

پدې خوښي مه کوه، چې د يو زهير سترګې د اوښکو ځځه ډکې وي.

په دې خوښي مه کوه، چې ستا د لاسه يو مين د جنون په کړۍ کښې محاصره کېږي.

آخر رحم وکړه؛ دا بې پروائي او استغنا خپله پېشه مه ګرځوه.

وهم رالوېږي چې ستا بې درما نه غمونه به ما هم د هلاکت و کندې ته شېوه کړي.

نو په ځړ پدلي سر غوښتنه درځخه کوم چې بېلتون ته خاتمه ور کړه او «نور مې مه زهيروه»

غلام فاروق انورزی



په مزارشریف کښې د کیمیاوي سرې د جوړولو، او د برېښنا د تولید د فابریکې یوه برخه چې
د هیواد د شمالي سیمو د لویو صنعتي تأسیساتو د جملې څخه دی. د کیمیاوي سرې د فابریکې
کلنۍ تولیدي ظرفیت ۷۱ زره ټنه مایع امونیا ده چې له هغې څخه ۱۲۵ زره ټنه (ازوتي) سره
لاس ته راځي، د حرارتي فابریکې د برېښنا ظرفیت ۴۰ زره کیلوواټه اټکل شوی دی.